# لوړ خیالونه او ژور فکرونه




انتخاب، ترجمه، تألیف

د

اروانباد استاد ګل پاچاالفت

۱۹۹۴/۱۳۷۳



## دناشرسریزه

«لوړخیالونه اوژورفکرونه»داروابناد استاد الفت له خواراغونډ شوی اثردی، دهٔ ددې اثرلهٔ پاره دنړۍ دهغوپوهانوآثارخوښ کړي چې پهٔ یوهٔ وخت هم پیاوړي مفکرین اوهم دپیاوړي قلم خاوندان لیکوالان او ادیبان وو. خواستاد دا اثارو داسې راپښتوکړي چې دترجمې نخښنه هم نهٔ پکښې ښکاري، او لکه ددهٔ دغوره نثرونوغوندې روان خواږهٔ اولهٔ شعري کیفیت نه برخورداردي. دهٔ داګمان هم کړی چې دداسې مفکرینو افکارېې دخپلې ترجمې لهٔ پاره غوره کړي چې دی یې هم دفلسفې پهٔ ژورښه پوه دی او هم دی پهٔ خپله له همدې لړۍ مفکرینوڅخه دی. همدارازدهٔ دنوموړولیکوالو هغه پارچې خوښې کړي چې زموږدټولنې لهٔ پاره یې نه یوازې داچې فکر او مطالب نااشنانه دي بلکه زموږ دټولنې دښې استفادې وړافکار او مطالب لري.

«سازمان مهاجرین مسلمان افغانستان» داروابناد استاد الفت داغوره اثردفکراونثردیوې ښې نمونې پهٔ توګه خپروي او هیله ده چې افغان ځوانان به یې په مینه ولولي اودفن اوفکرزده کړه به ترې وکړي.

په درنښت

سازمان مهاجرین مسلمان افغانستان

# فهرست



# مقدمه

وریحې پورته په هواکښې دي ، څاڅکي ښکته په زمکه کښې .

هغه څه چې په هسکووریځو کښې شته په ژوروڅاڅکانو کښې هم شته .

په دغو اوبو باندې هم هماغه تنده ماتيږي.

دلوړ خيال اود ژور فکر نتيجه يوه ده .

ته ! ياخپل نظر ډير لوړ کړه يا پخپل ګريوان کښې ډير سرښکته کړه !

دشاعراو فيلسوف فرق همدغه دی .

زه شعر اوفلسفه همدغه شان ګڼم .

«الفت»

# آزادي

په کوم حق دهوا آزاد مرغان په پنجرو کښې اچوئ ؟

څه حق لرئ چې دغه آسماني نغمه وال له ګوښه ځايونو، له چينو اولښتيو ،دسپيدوله رڼا اودونوله ځانګو څخه بيلوئ او دژوند پانګه ترينه اخلئ.

انسانه! ته په رښتيا داګومان لرې چې لوی خدای دغه ښايسته مخلوق ته داوزرونه او بڼکې د دې د پاره ورکړيدي چې ته يې وشکوې؟

آيابې له دغه ظلم او ستمه ته ښه ژوند نشې کولی ؟

آخر دغو بيګناهو څه کړيدي چې ټول عمريه ستا په زندان کښې تيروي .

داڅه معلومه ده چې ددغو بيګناه بنديانوسرنوشت زموږ له سرنوشت سره نه دی تړلی .

داچاته معلومه ده چې ددغو مرغيوآه به دظالمانو حاکمانو په څيرپه موږ را ونه ګرځي او موږ به ونه ځوروي .

آه - هيڅوك نه پوهيږي چې په دغه جهان کښې زموږله کړو نه څه نتيجه ولاړ يږي ؟

زموږ له هغو جنايتونوچې په خندا او خوشحالئ انجام مومي داسرارو په چار راهي کښې څه پيدا کيږي ؟

کله چې دشنه آسمان سپك وزره مرغان چې د دې لويې فضا الوتلوته پيدا دي په پنجرو کښې ايساروئ . هغه وخت چې د آسمان

دنیلي دریاب ښایسته لامبوزن دخپل ظلم په زندان کښې اچوئ دافکرنه کوئ چې یوه ورځ به د دوي په وینو لړلي نوکان له قفسو نوڅخه راو وزي او تاسوته به دروړسیږي .

ایا تاسودافکرنه کوئ چې هر چیرته چې یو بندي دظلم او ستم له لاسه فریاد کوي خدای ورته په رحم او مهربانۍ ګوري .

دخدای د پاره دشنوفصلونو او ښتونو کونجي دغوښندیانوته وسپارئ.

بلبلان آزاد کړئ مرغۍ خوشې کړئ.

دغه ښکلې پنجرې چې دزینت د پاره ستاسوپه کورونوکښې ځړ یږي په ډیر دقت وګورئ.

دجهان هغه تله چې تاسې یې نه وینئ دوه پلې لري.

همدغه دقفس نري اوزري مزي دي چې دزندانو اوجیلونوتور آهنین سیخونه ترینه جوړیږي.

داسمانونو، دچمنونو، دسیندونوبې آزاره لارویوته زیان مه رسوئ اوآزادۍ ته یې په احترام وګورئ.

د دغو بیوزلو اوبې ګناهو آزادي مه ایساروئ چې دتقدیر اوسر نوشت قاضي اوحاکم ستاسو آزادي سلب نکړي .

هغه چې دظالمانوله ظلمه فریاد کوي پخپله هم ظلم اوتیری کوي.

انسانه! ته په رښتیا آزادي غواړې اوآزادي دې خوښه ده ؟

که دغسې وي نوبیا ولې دغه بندي اودخپل ظلم پټه خوله شاهد پخپل کورکښې ساتې.

ظالمه ! ولې فریاد کوې چې په مابانديې ظلم او تیری کوي.

لړ څهٔ خودغه بيوزلی بندي و ګوره چې شيوری يې پهٔ تاباندې پريوتی دی.

دغه قفس ته خولړ غوندې څيرشه چې ستاپهٔ کور کښې څوړند دی اوتهٔ نهٔ پوهيږې چې د دې پنجرې دسيخونوترشاچې اوس پهٔ کښې يوبې ګناه مرغه نغمه سرايي کوي ديوهٔ زندان اساس اوبنياد ايښودل کيږي

(هوګو)

## اجتماعي عيبونه

هغه څوك چې له ټولو اجتماعي عيبونو يعنې له خودپرستی، تعصب ،خطاکاری اودروغونه خلاص وي له اجتماع سره به دومره مخالف وي چې بې له انزوانه به هيڅکله ژوند ونکړی شي

«ګوستاولوبون»

# ګل ویل

ګل بوراته ویل :

زهٔ اوتهٔ تقدیر یوله بله بیل کړي یو ، زه دلته پاته کیږم مګر تهٔ هرې خواته الوزې او هرلورته تلی شې، سره له دې مااوتایوپهٔ بل پورې زړهٔ تړلی اولهٔ خلکو نه لرې خواپهٔ خوا ژوند کوو.

زهٔ اوتهٔ دومره یوبل ته ورته یوچې کله کله دواړوته ګل ویل کیږي

افسوس دی چې تهٔ لهٔ نسیم سره پروازکوې اوزهٔ پهٔ زمکه کښې زنداني یم .

ماڅومره ارزو لرله چې لهٔ تاسره والوزم.او ستاپهٔ مخکښې خپله خوشبویي خپره کړم.

مګرتهٔ دومره لرې ځې چې زهٔ درسره ملګرتیا نشم کولی .

ته همیشه پهٔ ګلونوکښې پروازکوې زهٔ یوازې دخپل سیوری ننداره کوم چې دلمر له ګرزیدوسره زما شاوخواګرځي.

تهٔ ځې اوبیا راځې بیا بیرته ځې او دبل ځای قصد کوې مګر ماوینې چې هر سحر پخپل ځای تینګ ولاړیم او اوښکې تویوم.

بوراګله ! د دې د پاره چې زما اوستا یارانه ټینګه پاته شي یاتهٔ ماغوندې خپلې نیلې پهٔ زمکه کښې خښې کړه یاماته بڼې او وزرونه راکړه چې تاغوندې والوزم اوله تا سره پرواز وکړم

«هوګو»

# شپږ زره کاله پخوا...

شپږ زره کاله کیږي چې سړي دسړوپهٔ وژله لګیادي.

.... اسمان هرکله دزنبق دګلونو اودښایسته مرغیو دځالو پهٔ صورت خپل استازي رااستوي چې دوي دصلح او محبت خواته راوبولي مګردغه دمیني پیغامونه دخلقو لهٔ زړو نوڅخه دلیونتوب اثر نهٔ وړي .

له ډیره وخته دځمکې دخلکو زور وره مینه له وژلو اووینوتویولوسره پیدا شویده .

ډیرموده کیږي چې دملتونوخوږه اوجذابه موسیقي دجنګ اوجګړې ساز اوسرود دی.

ډیروخت دی چې افتخار دویروونکې خپسکې بڼه پیدا کړیده چې پهٔ دیو هیکله ارابه پهٔ لاره تیریږي او ښځې،نران ،لوی واړه له پښولاندی چیتوي.

اوس زموږ سعادت اونیکبختي له ډیرې مشکل پسندۍ نه کاراخلي اوهغه وخت یې وچولی غوړیدلی وي چې خلك ووایي «ځوځانونه وژنو» اوس باید دسعادت ګټلو د پاره دجنګ نغاره وډنګیږي .

هرچیرته دپولادوبرق پهٔ چلیدو دی ، پهٔ هر ځای کښې دبلو لمبو لوګي او لوخړې پورته کیږي .

هغه خلك چې ډلې ډلې دخلکو دوژلود پاره دجنګ میدان ته روان دي دخپلو توروشپو درونولو د پاره دتوپونو دخولولمبوته ضرورت لري.

دا ټول کارونه یوازې دقومونودمشرانود جاه طلبۍ د پار دي .

هغوی لاپهٔ موږ باندې خاورې نهٔ وي اړولې چې زموږ پهٔ

قبرونو باندې د دوستۍ معاهدې کوي.

ځناور او مرغان لاد جنګ په میدان کښې زموږ په وینو اوهډوکو پسې ګرځي او دغه آقایان یوله بله سلامونه او احترامونه مبادله کوي.

زموږ په ننني دنیا کښې هیڅ ملت نه غواړي چې یوبل ملت خپل ګاونډووینې .

هغه کسان چې د دوي دحکومت دوام زموږ دحماقت نتیجه ده هره ورځ دقهر او کینې احساس زموږ په روح کښې تقویه کوي او هغه اورته لمن وهي چې دوي پخپله بل کړیدی ...

ښایي چې له یوه سیوری لاندې آرام کښیناستل دیوې چینې خوږې اوبه څښل ،له یوې ګټې او ګورې ونې لاندې له خپلورو یاؤسره مشغولاخونداولذت ولري مګر دنن ورځې انسان له دې ټولوخوندونونه زیات خونددخپلوورونوپه وژله کښې مومي.

هغه وخت چې سپیدی چوي او درنا پیغام جهان ته راوړي، هغه وخت چې دسحر مرغه نغمه سرایي کوي دغه جګړه مار انسان دوژلواووینوتویولوپه فکر کښې وي اوله کینې نه کار اخلي .

«هوګو»

# حضرت محمد (ص)

هغه (ص) پوهیده چې دعمر وروستی سلګۍ ده او دژوند رڼا لکه
دمازیګر زیړی لمر درنګ ساعت له لهٔ سترګوپناکیږي .
دی به تل پهٔ فکر کښې ډوب ؤاوپهٔ هیڅابه یې پړه نهٔ اچوله .
چې پهٔ لاره به روان ؤ . له هرې خوا سلامونه پرې ویل کیده ، دهٔ
به هم هرچاته پهٔ مهربانۍ ځواب وایه .
پهٔ زیره کښې یې شل ویښتان سپین نه لیدل کیده او زهیر تیایې
ورځ پهٔ ورځ زیاتیده .
کله به چې اوښانو اویهٔ څښلې دی به ورته ودریده اوهغه ورځې به
یې پهٔ زړهٔ ګرځیدې چې دهٔ به دخپل تره اوښان څرول.
هروخت به دخدای پهٔ درګاه کښې پهٔ زاز اونیاز مشغول ؤ.
خوراك یې بیخې لږؤ اوډیر ځله به یې پهٔ نس پورې تیږې تړلې.
پخپل لاس به یې خپلې میږې لوشلې ،چې جامې به یې وشلیدی
پهٔ زمکه به کښیناست او خپل کالي به یې پخپله ګنډل .
دځوانۍ قوت یې نه ؤیاته، ډیرو روژو د ده بدن کمزوری کړی ؤ .
په ډیرو اوږدوورځوکښې به یې درمضان ټولې روژې نیولې.
د دري شپیتو کالوؤچې ناځاپه تبه پرې راغله .
هغه قرآن چې دخدای له لورې پرې نازل شوی ؤ ،ټول یې ولوست
داسلام بیرغ یې سعید ته په لاس کښې ورکړ او هغه ته یې وویل :
دا زما د ژوند وروستۍ ورځ ده تهٔ پهٔ دې پوه شه چې بې له یوه

خدایه بل خدای نشته ، تهٔ دهغه پهٔ لاره کښې جهاد وکړه .

دی ډیر آرام معلومیده مګرنظرېې دهغه لوړپرواز عقاب غوندې ؤ چې دلوړې فضا پهٔ تر کولومجبور شوی وي .

پهٔ دغه ورځ هم دی دهروخت پهٔ شان دلمانځهٔ د پاره مسجد ته راغی اوپهٔ حضرت علی یې تکیه کړې وه ،مومنان او مسلمانان ورپسې راروان وواوپهٔ مخکې یې مقدس بیرغ رپیده .

چې مسجد ته ورسیده رنګ یې الوتی واوخلکوته یې وویل:

ای خلکو! که چیرې د پاك خدای (ج) اراده نه وای مابه له یو ړانده او ناپوه نه څهٔ فرق نه درلود.

چاورته وویل دخدای (ج) رسوله ! هرچاچې ستا بلنه دحق پهٔ لورې و او ریدله ستاپهٔ خبرویې باور راغی اوپهٔ ایمان مشرف شو کله چې تهٔ دنیاتهراغلې نوپهٔ اسمان کښې نوی ستوری ښکاره شو او دکسری د طاق درې برجونه ونړیدل .

مګر هغه (ص) خپلو خبروته دوام ورکړ اوویې ویل : اوس زما وروستی ساعت رارسیدلی دی او د آسمان پرښتې زما پهٔ باب کې مجلس لري.

غوږ کیږدئ او واورئ ! کهٔ ماستاسو کوم یوهٔ ته کله کومه بده خبره کړې وي هغه دې پاځیږي اوپخواله دینه چې زهٔ لهٔ جهانه لاړشم ماته دې بیرته راوګرځوي او هماغه څهٔ دې راته ووایي.

کهٔ مې څوك وهلي وي ومې دې وهي کهٔ مې لهٔ چانه څهٔ اخستي وي رانه دې واخلي ، پهٔ دغه وخت کې یې هغه لرګی حاضر ینوته

وړاندی کړ چې د ده پهٔ لاس کښې وُ ، هلته یوه بوډۍ ناسته وه او وړۍ یې وریشلې هغې چیغه کړه چې ای دخدای رسولهٔ خدای دې له تاسره ملګری وي .

ده (ص) بیا وویل : ای خلکو ! پهٔ خدای ایمان لرئ اودهغه حضور ته پهٔ تعظیم سرونه ټیټوئ، دمیلمنو پالنه کوئ پرهیزګاراوسئ او عدالت وچلوئ .

دغه وخت لږ غوندې غلی اوپهٔ فکر کښې شوبیایې ور و ورو ګامونه واخستل اوویې ویل: ژوند وخلکو ! زه بیا تاسو ټولو ته وایم چې زما د تللو وخت دی ژر کوئ پخوا تردې چې زهٔ داجل پیاله نوش کړم زما ګناه چې ما کړې وي راپهٔ یاد کړئ او هربدمې چې ستاسوله هریوه سره کړې وي ، له مانه انتقام واخلئ .

خلك له ده نه غلي او نیولي په څنګ تیریدل ، ده دابوالفداء له څاه نه اوبهٔ راوغوښتلې اومخ ولاس یې ومینځل ، یوهٔ سړي ترینه درې درهمه وغوښتل ده سمدلاسه ورکړه اوویې ویل:«دحساب فیصله دلته ښهٔ ده نه پهٔ قبرکښې » خلکو پهٔ ډیره مینه پهٔ هغسې نظر لکه چې کوتره یې لري دغه دجلال او عظمت خاوندته کتل چې ډیره موده د دوي د ډاډ اوامید مر کزؤ.

دی (ص) خپل کورته ننووت ډیر خلك له کالهٔ نه د باندې پاتې شوه او ټوله شپه یې پهٔ ویښه تیره کړه سحر چې سپیدې وچاودې دهٔ وویل :

ابوبکره ! زهٔ نور د پاڅیدلو توان نه لرم پاڅېږه ماته قرآن ولوله پهٔ دغه وخت کښې دده کوربې بي عایشهٔ د دهٔ ترشاو لاړه وه .

دی دآیتونوپه اوریدلو مشغول وُ چې حضرت ابوبکر (رض) لوستل کله به یې پهٔ ورو وروشروع شوی آیت تمام کړ، پهٔ دغه وخت کښې نورو ټولو ژړل او چاخپله ژړا نشوه ټینګولی

نژدې مابنام وُچې عزرائیل (ع) دکالهٔ پهٔ دروازه کښې ښکاره شو او دننوتلو اجازه یې وغوښتله

دخدای (ج) استازي وویل : پرېږدئ چې دننه راشي ،پهٔ دغه وخت کښې هرچا د ده پهٔ سترګو کښې دده دولادت دورځې غوندې یوعجیب ځلیدونکی برق ولید.

عزراییل دهٔ ته وویل : دخدای (ج) رسوله تهٔ خدای (ج) خپل حضورته بللی یې .

دهٔ وویل : زهٔ دحق دعوت ته لبیک وایم له دغې وینا سره دی وریز-دیده او دیوه آرام نفس پهٔ وتلو دهٔ شونډې بیرته پاته شوې او حق ته یې ځان وسپاره .

«هوګو»

# خيال او اميد

د آسمان په لونوکښې کومه يوه ډيره ښه ده ؟ زه هرڅوك خپلې عقيدې ته پريږدم اوپخپله د آسمان هغې لورته په زړه کښې ډير ځای ور کوم چې تل په پرواز کښې ده او خيال ورته وايي... دې ښکلې جنۍ ډيرښه هوسونه پخپل پلو کښې راټول کړيدي.

آسمان خپلې دغې هوسنا کې او نيازمينې لورته اجازه ورکړيده چې هرڅه يې زړه غواړي هغه له ځان سره واخلي .

دې ښايسته اوګلالۍ جنۍ کله دګلو تاج په سر باندی ايښی دسوسن امساپه لاس د ګلو اوسنبلو په چمن کښې ګرځي بورا ګانوته دا لوتلو لوری اولودن ښيي .

لکه دشاتومچۍ له ګلونوسره خوله په خوله شي او په شيره يې ځان مړوي .

يووخت له خورو وروڅڼو سره خپله سپينه ښه زور ورې سيلۍ ته سپاري او په دغه حين کښې دسحر دسپيدوسپينه جامه يادتورې شپې تو ر کالي اغوندي اوهره ګړۍ دخلکو په نظر کښې بيله جلوه لري.

دلوی خدای دابنيګڼه بايد هيڅکله هيره نکړوچې موزيې ددغې وفا دارې جاودانې پيغلې په ملګرتيا برخور دار کړو .

زموږ سر نوشت يې د دې له سر نوشت سره په يوه ملکوتي پيوند کلك وتاړه چې په غم اوښادۍ کښې راسره وي .

په دغه ښکلی بخشش بايد ډير خوشحاله اوسواوداښايسته حوره ډيره وستايو.

دزړهٔ پهٔ کور کښې دکوردمیرمنې ځای باید دیته پریږدو او ډیر پام وکړو چې هغه بد ګذرانه او بد خویه خواښې یعنې عقل د دې ښکلې نازنینې ناوې زړهٔ آزار نکړي.

اوه یوازې همدغه جنی پهٔ ماباندې نهٔ ده ګرانه ددې له خور سره هم زهٔ ډیره تېینګه علاقه لرم.

خورېې له دینه لږ ځهٔ لویه او جدي شانته ده چې «امید» ورته وایي.

څومره به ښهٔ وي چې دغه مهربانه ملګرې چې له ډیرې مودې زما دسعادت پانګه ده ترهغه وخته راسره وي چې زما د ژوند ډیوه مړه شي او ژوندخاتمه ومومي.

«ګوته»

# له مرګه نه ویریږم

له مرګه نهٔ ویریږم ،کهٔ څوک راته ووایي چې نن شپه مرې زهٔ به ووایم چې دخدای رضا مې قبوله ده مګر خدای دې نه کاچې څوک راته ووایي دیوه تن ژوند ستاله لاسه تریخ دی.

«کانت»

# د غم خوبني

زما داخبره بې له پوهانوبل چاته مه کوئ ځکه چې ناپوهان بې له ملنډوپهٔ نور څهٔ نهٔ پوهیږي .

زهٔ غواړم هغه څوك وستایم چې ځانته اورلټوي اولکه پتنګ سرهٔ اورته ځان غورځوي.

دعشق پهٔ شپو کښې چې دژوندنیالګي کرل کیږي اودحیات ډیوه لاس پهٔ لاس ګرځي دسپینی سپوږمۍ پهٔ لیدلو ستاپهٔ روح کې یو مرموزهیجان پیدا کیږي ، ته بیا خپل ځان دتورتم پهٔ زندان کښې بندي نه وینې ځکه چې هره ګړۍ دیوهٔ لوړمقام آرزو درسره وي .

تهٔ بیا داوزدې لارې او دګران سفر لهٔ غمه خلاصیږې اوخپله اروا پهٔ بیړه دنور اوصفا چینې ته استوې چې دشوق پهٔ لمبه لکه پتنګ ځان ستي کړې.

ترڅو چې پهٔ دغه نکته پوه نشې «مړشه چې ژوندی شې » پهٔ دغه تورتم او تیاره جهان کښې به لکه نوم ورکی میلمه اوسیږې .

«ګوته »

# د ژوند لوبه

څهٔ موده مااوتايولهٔ بله زړونه تړلي وو، اوپهٔ غم اوښادی کښې ملګري وو.

پهٔ وار ووارو مودښځې اوميړه لوبه شروع کړه بې له دې نه چې خبره جګړو او دعووته ووزي .

ډير ځله مويولهٔ بل سره وخندل ،د دوومينو غونډې مويودبل پهٔ مخ دمينې لاسونه راښکل ، شوخي موو کړه ،يوله بله موخولهٔ واخستله او خولهٔ موورکړه .

پهٔ آخر کښې مو دوړو پهٔ شان پهٔ ځنګلونواو کښتونوکښې د الاداد اوپټپټانې لوبه شروع کړه اويولهٔ بله داسې پټ شوو چې تراوسه موسره نهٔ دي موندلي .

«هاينه »

## پوهــه

دپوهې قوت ته وزورنه مهٔ پيدا کوئ، بلکه څهٔ سرپ ورپورې وتړئ

«بيکن »

# هر چاو ځور ولم

ځينوپخپل عشق وځوروولم ، ځينوپهٔ کينه زما زړهٔ آزار کړ.
چا دعشق پهٔ زهروزما ډوډی ولړله.
چازمادشرابوپهٔ پياله کښې دکينې زهرتوی کړه .
مګرله هرچانه هغه چاډير وځوروولم چې نه يې راسره کينه پيدا شوه اونه مينه .

«هاينه»

# زما ترانې

زما ترانې ټولې پهٔ زهر ولړلې دي.
ولې به نهٔ وي لړلي آيا تازما دزنده ګی پهٔ جام کښې زهر توی نکړه ؟
زما ترانې ټولې پهٔ زهرولړلې دي، ولې به نهٔ وي لړلي آيازهٔ پخپل زړهٔ کښې پهٔ زرهاؤ ماران نلرم ؟
آيا لهٔ دغو ټولو مارانونه علاوه تهٔ زما پهٔ زړهٔ کښې ځای نلرې ای زما دلداره!

«هاينه»

# دهوسونومرك

زما هوسونه مړه شوه مګرزهٔ لاژوندی یم.

ماخپل زړهٔ لهٔ خوږو اوخوند وروروژ یاؤ څخه وشکاوه اومړنشوم .

اوس ماته بې له رنځ تیرولو اوغم خوړلونه نور څهٔ نهٔ دي پاته.

زما غلی اوچوپ زړهٔ دهمیشه د پاره دامید لهٔ تودوالي محروم دی .

زما دسرنوشت طوفانونوزما د ژوند تراوتازه ګل مړاوی کړ اوس زهٔ یوازې له ناامیدۍاو افسرده ګۍ سره مخامخ یم او دنجات وروستۍ ګړۍ ته ګورم .

زه هغه وچه پاڼه یم چې منی او خزان یې لیدلی مګر دالاپهٔ لغړښاخ پاتې ده اودساړهٔ ژمي بادونه یې ریږدوي .

«پوشکین»

# دشاعرحال

ترڅوچې دهنررب النوع تازه طعمه ونهٔ غواړي شاعرغلی او آرام دی .
دی هم دنورو غوندې پهٔ خوړو اواو بوېسې هڅه کوي اودوګړو پهٔ
شان پهٔ ډيرو وړوکارونوباندې بوخت وي.

د دهٔ آسماني سرينده غلې وي اوهيڅ غږ ترينه نهٔ خيژي.
زړهٔ يې له غم اورنځه فارغ وي او د ژوندله مبتذلو خوښيوسره يې
تعلق وي.

لنډه داچې دجهان بې هنره خلکو غوندې عادي ژوند لري.
کله چې ناڅاپه دهنر رب النوع دشاعرپهٔ زړهٔ کښې ځهٔ واچوي روح
يې لکه ګربته چې له درانه خوبه پاڅيږي ريږدي اولهٔ دغه احمقانه وخت
تيرولوڅخه خوابدی کيږي.

دجهان له عادي شور او غوغا څخه تښتي او خپل سردخلکوناڅيزه
بوتانوته نهٔ ټيټوي،بلکه پهٔ ډيروقار او ټينګارلهٔ دغه عالمه کناره کيږي
دډکوسيندونوپهٔ موجونواودځنګلوپهٔ شاعرانه زمزموېسې روانيږي.

«پوشکين »

# شاعرته

شاعره! دخلکو په ستاینه مه غولیږه ! ځکه چې دمدح او تحسین نغاره ژرغلې کیږي.

داحمقانو اوبیشعوره خلکوخندا اووینا ته غوږمه ږده !

تل غلی جدي او ټینګ اوسه !

ته پادشاه یې باید دشاهانو غوندې په انزوا کښې ژوند وکړې .

ته خپله لاره مه پریږده او هغه ځای ته ولاړشه چې ستاآزاد طبیعت یې دربنیي.

ته دخپلو هغواندیښنواوخیالاتو محصول چې په تاباندې ډیر قدر لري خلکوته وړیاور کړه اوپخپل دغه بخشش له چانه څه مه غواړه !

اجر اومزدوري مه غواړه ځکه چې ستامکافات بې له تانه بل څوک تاته نشي درکولی.

ته پخپله دخپل ځان قاضي یې ځکه چې هیڅوک ستاپه باب کښې تاغوندې سختګیرنه دي.

ای مشکل پسند هنر منده! آیا ته پخپل کار پخپله خوښ یې؟ آیا ستازړه خوشحاله دی ؟ که دغسې وي نوبیا څه پرواده که خلک له تاسره دښمني وکړي اوتاته بد ووایي .

پریږده چې احمقان دهغه معبد په غولي کښې لاړې توکړي چې په محراب کښې یې ستا دنبوغ او رڼلمبې کوي. پریږده چې دوي دخپلې بې عقلۍ په وجه ستادځلاند مشعل پایې ولړزوي .

«پوشکین»

# ادب اومحبت

پام یې نه وُ ، د دې پهٔ ځای چې پهٔ ډېر ادب راته «تاسو» ووایی ،پهٔ ډیره مینه یې راته وویل:

«ته».

پهٔ دغه وخت کښې دخوشحالۍ اوخوشبختی خیال زما مضطرب او پریشانه روح ونمانځه او عاشقانه مچې یې ترې واخستله .

زهٔ اوس دهغې پهٔ مخکښې ولاړیم اویوه شیبه ترینه سترګې نشم اړولی.

پهٔ خوله وایم ای ښکلې پیغلې «تاسو» څومره پهٔ ادب یاست
مګرپهٔ زړهٔ کښې وایم : تهٔ پر ماباندې څومره ګرانه یې.

«پوشکین»

# دحقیقت اظهار

که زهٔ دحقیقت پهٔ اظهار کښې زیانووینم پروانشته خوچې حقیقت زما دچوپوالي پهٔ وجه زیان ونهٔ ویني.

«مترلینك»

# پیغمبر

دمعنی تنده او تلوسه راسره وه .
په چوپه اوغلی بیدیاکښې لالهانده ګرزیدم .
هغه پرښته چې شپږو زرونه لري له پاسه را کوزه شوه اوخپلې ګوتې
یې چې له خوب اوخیاله سپکې وې زماسترګوته رانزدې کړې .
مادوا رخطاګریتې غوندې خپلې سترګې پرانیتې .
دهغې لاس زما دغوږو نوله څنګه تیرشو زما په غوږونوکښې ناڅاپه
یومرموز اوازپیداشو.
همدغه وخت ماداسمان دزړه دتپیدواواز واوریده .
د دریاب له موجونولاندې مې دبحري حیواناتوتلګ راتلګ ولیده .
دکوروپه بوټوکښې مې دتاك څانګې اوپاڼې لیدې چې وده کوي
اولوئیزي
پرښته زما شونډوته رانزدې شوه زما هغه ژبه یې رانه پریکړه چې کار
یې نیش وهل وو.
بیایې پخپلو لاسونوچې په وینولړلي وویوه بله ژبه زماپه خوله کښې
کښیښوده .
زما په څیګریې تیره توره ومنډله زمارپیدونکی زړه یې راوایست .
او داورسوځو وونکې لمبه یې زما په سینه کښې ننویستله.
زه دیوه مړي په شان غلی اوبې حرکته دبیابان په شګوکښې پریوتم
دغه وخت مې ناڅاپه خدایي غږتر غوږه شوچې ماته یې ویل : پاڅیږه!

ستر‌ګې وغړوه ،دخدای فرمان ته غوږونيسه او د اجرا د پاره يې سمد-
لاسه روان شه له بيابانونواو دريابونونه تيرشه پخپلو اوږ‌ېښتو
خبرودايمان اوردخلکوپهٔ زړوکښې بل کړه !

«پوشکين»

## دنيکانوارمان

دنيکانو لوی ارمان دادی چې دسړوجوړولوپهٔ کارکښې برخه ولري کهٔ
څهٔ هم د دوي کارېټ پاته شي اوڅوک پرې پوه نشي.

«سپنسر»

# قبر او گل

قبر سرهٔ گل تهویل :

ای دعاشقانو گله ! هغه داوښکو څاڅکي چې هره شپه دچرغزِ اوسحرله سترګوستاپهٔ ښکلي بڼه راتوئیږي ته پرې څهٔ کوې ؟

گل وویل :

اول تهٔ راته ووایه ! هغه چې تهٔ يې هروخت خپلې ګیډې ته ننباسې څهٔ ورسره کوې ؟

قبرویل : گله ! زه له هرې اروانه چې ماته يې سپاري پرښته جوړوم اواسمان ته يې لیږم .

گل وویل : قبره ! زهٔ دغه اوښکې ورو ورودعطرو اوعسلو پهٔ صورت تبدیلوم اوخلکوته يې ورکوم !

«هوګو»



# افتخار

داطلايي سکه چې ددنیا په بازار کښې دافتخار په نامهٔ چلند لري هیڅ گنهه .

هو! زه ورته په کرکه گورم اوله پښولاندې يې کوم .

هغه چې دخپل هنر مزدوري غواړي دټيټ فطرت خاوند دی .

هغه چې ددغه بازار په سرو اوسپينو پسې لیوال دی پريږدۍ چې دې بې ارزښه سکې ته لاس وغځوي .

داسکه هغه څوك اخلي چې ځان خرڅوي.

که ته غواړې چې دغه خلق وپيرې نوراشه دوي ټول ځانونه خرڅوي .

ته باید دوي ته یو مناسب قیمت وټاکې اوخپله امیانی وشرنگوې .

که داسې ونکړې نوددوي په تقوی اعتراف کوې.

آیاته نه پوهیږې چې دوي ټول دتقوی خاوندان دي.

افتخار اوتقوی تل اوږه په اوږه وړاندې ځي.

ترڅوچې دنیا شته خلق دتقوی بهاپه افتخار تادیه کوي.

دافتخاردسکې آوازدې چې دنیایې په پښودرولې ده .

ماپريږدۍ چې دجهان د پرهیز گارانو په مقابل کښې بد معامله اوسم.

پريږدۍ چې زه دافتخار خاوند انوته هیڅ ښکاره شم.

زه چې ځان ددغسې خلکوپه مخکښې وینم زړه مې له اندازې نه زیات دحقارت تمنا لري.

زه دغه طلايي سکه چې دجهان په بازارکښې رواج لري او دافتخارپه

نامهٔ یادیږي هیڅ ګڼمه اوپهٔ نفرت ورته ګورم.
زهٔ اوس دافتخار او تقوی غوندې وړوڅیزونوپهٔ مخکښې نه یم ولاړ.
زهٔ دغه وخت له ډیرو لویوحقایقوسره مخامخ یم چې یاباید غلی اوچوپ پاته شم یاډیرې لویې خبرې وکړم.
ای زماپوهې او هوښیاری ! راشه هغه څهٔ ووایه چې دنوروپهٔ فکر کښې نه راځي.

«نیچه»

## څهٔ غواړم ؟

د ډیرو خلکوله پټورازونوخبرشو م مګرله ځانه لاخبرنه یم .
زما سترګې ماته دومره نږدې دي چې مانشي لیدای.
زما زړهٔ غواړي چې له ځانه څهٔ قد ر لرې شم او خپله څېره ووینم مګر دومره لرې نه لکه چې له غلیم نه لرې یم .
اوس زما ډیر نږدی دوستان هم له مانه ډېرلرې دي .
زهٔ غواړم د دوست اودښمن ترمنځ یوه فاصله ولرم ترڅوچې هغه څهٔ پهٔ ځان کښې ولیدی شم چې پهٔ ماکښې شته.
اوس پوه شوئ ! چې زما زړهٔ څهٔ غواړي؟

«نیچی»

# د بډای فقر

لس کاله کیږي چې یو څاڅکی باران په مابانديې ونه وریده .

یوه سره وږمه په ماونه لګیده دمینې اومحبت پرخه زمادزړه په کښت پرینوته ځکه چې په دغه ځمکه هیڅکله باران نه وریږي .

زماپوهې ! زه اوس تاته مخ اړوم اوتاته اسره لرم چې په داسې وچکالۍ کښې ته وچتوب غوره نکړې.

له تانه هیله لرم چې زما د پاره روح خوښونکې وږمه زړه خوشحالوونکې پرخه ژوند پالونکې اوریاشې.

پخواتردې ماوریځوته ویل چې زماله کوهستانه لرې شئ .

ماویل : ای تورو ورویځوزماله مخې نه لرې شئ چې درنا پلوشه په مابانديې ډیره پریوزي اومخه مې ښه رڼاوي .

اوس دهغو وریځوپه لاره کښې دامونه ږدم چې ګوندې یوه شیبه زماپه سربانديې سیوری شي اوزماخبرواخلي.

پخواله دینه په تریخ حقیقت پسې ګرزیدم اوس دتصادف څڼوته لاس غځوم او غواړم چې میلمه پالونکی شم ،خپله برخه اودخپل وچولي لیك له ځانه ونه شړم .

نن زرتشت له خپلې سختې نه لاس اخستی دی اولکه تودباد چې کنګل ویلي کوي خپل ملایمت څرګندوي .

تراوسه لاپخپل کوهستان کښې انتظارکازي مګر دغره له لوړې څوکې راښکته شویدی.

لهٔ هغو کنگلونه چې تل ترتله سارهٔ اوتړلي پاته کيږي يوقدم راتيټ شويدی،ستومانه دی مګر خوشحاله معلوميږي.

غلی شه ! چې حقيقت لکه ټينګه وريځ زما پهٔ سرتيريږي دوريځې لهٔ زړهٔ نه يوغير مريی برق ځليدونکی دی .

حقيقت ورو وروله ډيرولويوپټه پايواوپلوڅخه زماپهٔ لورې راښکته کيږي .

راشه ! راشه ! ګرانه حقيقته .

چوپ شه !دازما حقيقت دی چې پهٔ ځير ځير او خوازه اضطراب راته ګوري اوکتل يې لکه دستوروکتل جذاب اوشيطنت آميز معلوميږي تهٔ به وايې چې زما دنيکمرغۍ رازيې پخپل حدس موندلی دی اوپوه شويدی چې نن ولې دغرهٔ لهٔ لوړې څوکې راښکته شوی يم ولې ملايم او آرام يم ؟ تهٔ به وايې چې له ليدواو کتويې يوګلرنګه ښامارماته خوله وازه کړيده.

غلی شه ! چې زماحقيقت څهٔ وايي :

افسوس دی ستاپهٔ حال ای زرتشته ! ستا حال دهغه چاغوندې دی چې سوچه زرېې خوړلي وي ، آخربه ستاګيډه څيرې کړي اودغه زربه ترينه وباسي.

زرشتته ! تهٔ لهٔ اندازې نه زيات بډای ، له حده زيات دخلکو سترګې بريښنوې اوپهٔ زړونوکښې ځانته حسدپيداکوې.

زهٔ دستبادځليدونکې رڼا پهٔ مخکښې دريدای نشم اوسيوري ته پناه وړم اوښزدم

بډایه ! څه ولاړشه ! څه روانیږه ای زرتشته لهٔ خپل لمرنه لرې شه !

تهٔ غواړې چې لهٔ خپلې هغې رڼانه چې لهٔ تاسره ډیره زیاته ده نوروته پهٔ لپولپو څهٔ ورکړې.

تهٔ پهٔ دې نهٔ پوهیږې چې هغه شی چې لهٔ تاسره پهٔ رښتیا زیات دی پخلپه تهٔ یې.

کهٔ غواړې چې چاته څهٔ ورکړې له ځانه تیرشه خپل ځان ورکړه ای زرتشته !

تهٔ وایې لس کاله کیږي چې یوڅاڅکی باران پهٔ ماباندې نه دی وریدلی ، یوه سړه وږمه راباندې نهٔ ده لګیدلې، دمینې شبنم زما پهٔ زړهٔ نهٔ دی پریوتی .

تهٔ دا اسره لرې چې پهٔ مینه درته وګوري اوتابنهٔ وګڼي .

آیاتهٔ نهٔ پوهیږې چې ستادخوشبختۍ پلوشواو حرارت شا وخواځمکه سوزولې ده ؟

هغه زمکه چې لهٔ بارانه محرومه ده له عشقه هم څهٔ برخه نهٔ لري.

اوس ستا، ستاینه څوك نهٔ کوي بلکه تهٔ دخپل دسترخوان دپوټوټولوونکوستاینه کوې.

زهٔ تاپیژنم چې ډیر فقیر بډای یې.

ستاډیرشته تاپهٔ عذابوي . تهٔ خپل ځان پهٔ ډیره ورکړه ستومانه کوې خپلې ارامتیاته نهٔ ګورې ، له خپل ځان سره علاقه نهٔ بنیې.

ستاباطن همیشه هماغه شان پهٔ شکنجه کښې دی لکه چې پهٔ یوانبار کښې له اندازې اوګنجایش نه زیات غنم واچول شي یاپهٔ یوزړهٔ کښې لهٔ

حده زياته مينه پيداشي.

تهٔ خپل ځان قربانوې خو څوك ستا ،ستاينه نهٔ کوي!

اى بې پوهې هوښياره! کهٔ غواړې چې پهٔ نوروګران شې بايد ډيرفقيرشې.

داخلك له هغه چاسره مينه کوي چې پهٔ زحمت کښې ږي هغه چاته يوه مړى ډوډۍ ورکوي چې وږى وي .

اى زرتشته ! که غواړې چې چاته څهٔ ورکړې نوخپل ځان ورکړه او لهٔ ځانه تيرشه !

زماخبره واوره ، زه ستا حقيقت يم !

«نيچه»

# هيرول

هغه څوك چې څهٔ نشي هيرولى بنهٔ سړى نه دى.

څوك چې هميشه دبل دملامتۍ خاطره له ځان سره ساتي دبنهٔ زړهٔ خاوند نه دى .

# له هرچانه لرې

رټل اورټل کيده يوهم بيئ نهٔ کنم اوله دواړونه کرکه لرم .

دچااطاعت نشم کولی اوله چانه اطاعت هم نهٔ غواړم .

هغه چې له ځانه نه ويريږي بل هم نهٔ ويروي.

پهٔ نوروباندې همداغه څوک حکومت کولی شي چې نور ويروي .

زه به څنګه دغه کارته زړهٔ ښهٔ کړم چې دخپل ژوند پهٔ اداره هم نه يم خوښ.

زهٔ غواړم چې دځنګله يادسيند حيواناتوغوندې يوه شيبه ځان هيرکړم چيرته يوازې کښنيم .

له خپلولرې اوزدورؤياوسره مشغول شم .

خپل ځان له ډير لرې ځايه دلته راوبولم .

له ځانه زړهٔ وشکوم اوبيا له ځانه لهٔ بل چاسره څهٔ مشغولاونلرم.

«نيچی»

# دشاعر خوشبختي

دکلي رونق او ښتی دی، دخزان سیلۍ تولهٔ ښکلالهٔ ځان سره وړیده ، مگرشاعر دتیروپهٔ یادخپل غم سپکوي.

دی فکر کوي چې لهٔ داسې بدایعونه یوه ښکلې تابلوجوړه کړي چې هیڅ خارجي وجود نهٔ لري .

دی پهٔ رښتیا ډیر خوشبخت دی چې برباد شوی ښایست دخپل خیال پهٔ دام کښې نیولی او ساتلی شي.

«ایشندرف»

# تسلي

د ژوند پاڼه زیړه ده . اوس تاتوروخاوروته سپاري ای دخاورو اولاده !

مگر غم مهٔ کوه ! ستاله خاورونه به یوداسې نیالگی زرغون شي چې هرکال به نوي گلونه نیسي او هرپسرلی به ستاپهٔ یادوعطر افشاني کوي.

«روکرت»

# هابيل او قابيل

دقابيل نسله! تهٔ آرام ويده شه ! بنهٔ خوره اوبنهٔ څـکه ، تل موړ او خوشحاله اوسه ! ځکه چې ژوند تاته پهٔ ډيره مينه خاندي .

مگر ته اى دهابيل نسله! ټول عمرپهٔ خوارۍ اوبدبختۍ کښې غوټه اوسه اوپهٔ زحمت مړشه !

دقابيل اولاده ! ډير خوشحاله اوسه ځکه چې اسمان تاته پهٔ ډير بنهٔ نظر کتلي دي اوتهٔ يې خوښ کړى يې.

دهابيل اولاده ! تهٔ همدغسې پهٔ غمونو، زحمتونو اوسختيوکښې تل ترتله ژوند کوه !

دقابيل زوزاده ! خانده او خوشحاليږه ځکه چې ستاکښت ډيربنهٔ راغلى اوستار مې کال پهٔ کال زياتيږي.

مگر تهٔ اى دهابيل زوزاده ! همدغه شان پهٔ لوږه شپې سبا کوه اوفرياد کوه.

دقابيل بچيو! تاسې تودونغريوته نزدې کښېنئ اوځانونه تاوده کړئ مگر تاسې اى دهابيل بچيانو لکه ګيدړان پهٔ سمڅواوغارونوکښې لهٔ سړونه ور يږدئ اوورپيږئ .

دقابيل ښسيو! تاسو معاشقه وکړئ ! اوڅنګه چې ستاسو سرهٔ اوسپين زياتيږي خپل ټبر هم زيات کړئ اوهرکال نوي اولادونه راوړئ .

مگر تاسواى دهابيل ښسيانوخپله اشتهاوسيځئ اولهٔ خپلې کمبلې نه هيڅکله پښې مه باسئ !

دقابيل ټبره! تهٔ دڅنګلونودحشراتوغوندې تل خوره اوغټيږه!

مگرتهٔ دهابیل ټبره ! لهٔ خپلو اولادو نوسره پهٔ لارواوکوڅوکښې سرگردانه گرځه !

آه ! دقابیل نسله ! کهٔ تهٔ مړهم شې ستاپهٔ غوښو اوهډوکوبه ځمکه تیاره شي او کښت به یې ډیرښهٔ راشي مگرته ای دهابیل نسله ! پهٔ ژوندهم څهٔ حاصل نه لرې اوهیڅ لاس ته نهٔ درځي .

مگر گوره! ای دقابیل نسله ! سره لهٔ دغوټولوشیانویولوی شرم هم ستاپهٔ برخه رسیدلی دی هغه داچې ستاپهٔ حکومت کښې «پاله اوکرکې دسرنیزې په مقابل کښې مغلوبه ده ».

تهٔ ! ای دهابیل نسله دا ځمکه پر یږده اواسمان ته وخیژه ځکه چې ځمکه یې ستاد پاره نهٔ ده پیدا کړی.

«بودلر»

# سخاوت

سخاوت دانه دی چې سړی چاته ډیر څهٔ ورکړي بلکه پهٔ ځای ور کړه سخاوت دی

«لاربرویر»

# بی اسرې

یتیم هلك وم ،د دنیاله شتونه مې دوه رڼې بینا سترګې درلودې چې دزړهٔ آرامتیاپکښې لیدل کیده .

زهٔ پهٔ ډیرامید دلویوښارونوخلکوته ورغلم مګردوي ماته څهٔ اعتنا ونکړه څکه چې دوي ته ډیرزرنك ښکاره نشوم .

شل کلن وم چې یوپېټ اورزما پهٔ زړهٔ کښې بل شو اویوناڅاپه راته ټولې ښځې ښکلې او ښایسته ښکاره شوې زهٔ پهٔ ټولو مین شوم مګرپهٔ دوي کښې یوه هم پهٔ مامینه نشوه اویوې ته هم زهٔ ښکلی ښکاره نشوم.

کهٔ څهٔ هم ماوطن اوپادشاه نه درلود مګربیاهم د جنګ میدان ته ورغلم چې مړشم خومرګ قبول نکړم .

زهٔ اوس نهٔ پوهیږم چې دلته څهٔ کارلرم او دڅهٔ د پاره یم ؟ماته دانه ده معلومه چې دنیاته پخواله وخته راغلی یم اوکه وخت رانه تیرشویدی.

«ورلن »

# خلك اوشاعر

یوه ورځ هغه لوی اوپراخه میدان هغه لوړ او اوچت غره ته وویل :

«ستا په وچولي کښې د ژوند نخښنه هیڅ نشته، ستاپر مخ باندې همیشه دسیلیو اوبادونوڅپیړی لګیږي».

په همدغه وخت کښې داولس خلکوشاعرته وویل :ستاسروکار تل له خیال او اندیښنوسره دی او ستا وجود هیڅ نه دی په کار ».

سنګین غره په ځواب کښې وویل :

«زه یم چې ستاله سینې نه هر راز بوټي راکاږم ، دغرمې سوځوونکې تودڅخـه پخپل ساړه دم باندې سړومه ،طوفاني وریځومخه نیسم پخپلو ګوتو دواوروبځري جوړوم اوذخیره کوم یې زماله سینې څخه داوبولښتي روانیږي اوتاته د ژوند پیغام دروړي» .

شاعر هم خلکوته وویل : «پریږدئ چې زه سرپه زنګانه کښېزدم اوفکر وکړم آیاتاسونه وینئ چې زما دزړه له چینې نه ډیرې خوږې اوبه راخوټیږي چې دبشرتنده ماتوي » .

«ګویته »

# انسان

هميشه ويريدل، پهٔ هروخت کښې هيله اواسره لرل هرکله دپخوانيو خاطراتويادونه ، دايمي شکايتونه ،مسلسله ناراضي، د دروغوپهٔ لذت پسې افسوس او ارمان ، پهٔ حقيقت پسې هيڅکله نهٔ گرځيدل خپل ځان له خپل اصلي قيمت نه کله زيات اوکله کم گڼل ، يوازې پهٔ غم او محنت کښې ځان پيژندنه اودگورپهٔ غاړه د ژوند پهٔ ماهيت پوهيدل.

دادی د انسان حيقيقت يالږترلږه زما مفهوم اومعنی. سره له دغوټولوخبروزهٔ پخپل ژوند کښې يوحقيقي افتخارلرم هغه داچې ددروغوپهٔ شهرت پسې هيڅکله نه يم گرځيدلی.

هيڅکله مې بې دعشق له درشله بل شي ته سرنهٔ دی ټيټ کړی. زهٔ عشق هميشه له ځانه لرې کړی اوبيل کړی يم اودښهٔ نامهٔ تنده يې پهٔ ماکښې پيداکړيده مگرعشق اوافتخاريوه هم تراوسه پورې بې دزړهٔ له غمه نور څهٔ نهٔ دي راکړي.

«الفيری »

# پهٔ انگلستان کښې

دغم داستان بیانول اوداسې څوک لرل چې پهٔ دغه داستان پوه شي او خپل پټ غمونه پکښې وويني دغمجن زړهٔ د پاره ډېره ښهٔ تسلي ده .

يووخت دغه تسلي زماپهٔ برخه رسيدلې وه مګرکله چې مادانګلستان پهٔ خاوره کښې قدم کيښوده .

هغه وخت چې ماد دې ځاى خلك وليدل چې ډېروټينګواو تور وو ريځو د دوي له نظره شين اسمان پټ کړيدى نوزه له دغې تسلى نه محروم شوم دلته هيڅوك نشته چې دزړهٔ پهٔ ژبه پوه شي.

اوه! داساړهٔ خلك ، دايخ زړونه چې دخداى (ج) له نامهٔ نه هم غافل پاته دي بې له طلاؤڅخه بل خداى نه پيژني اوبې له پيسونه بل شي ته پهٔ تقدس نهٔ دي قايل .

کشکې زما دزړهٔ آهونه دومره پورته لاړشي چې دالپ دکوهستان لمنوته ورسيږي بنايي چې هلته داسې خلك وومي چې دعاشقانودزړهٔ پهٔ غمونواورازونوپوهيږي .

«الفيرى»

# غوبی

ای دفصلونواو کښتونوپالونکیه !

ای وفادارخدمتګاره ! ته د ډیرلوی او آرام قوت ښکارندوی یې.

زهٔ لهٔ تاسره ډیره مینه لرم تهٔ پهٔ ماباندی ډیرګران یې.

لهٔ تاسره دصلح غوښتلواوعزة النفس روح موجوده ده .

تهٔ لکه یوه خاموشه مجسمه خپلې کروندې ته ګورې او ددې دپاره چې دفداکارۍ وظیفه ترسره کړې پخپله خوښه درانهٔ جغ ته سرټیټوې .

تهٔ دانسان پهٔ خدمت کښې دموقرفرمان بردارپهٔ ډول خپل عمر تیروې.

هروخت چې هغه تاوهي او ژوبلوي دې تهٔ ورته سرراګرځوې اوپهٔ صبر اوتحمل ورته غلی اوآرام ګورې.

تهٔ پوهيږې چې دجهان ودانول ستاوظيفه ده .

تهٔ دانسان دتيري پهٔ مقابل کښې څهٔ نهٔ وايې اوشکایت ستاعادت نهٔ دی.

تهٔ سرکشي اونافرماني نهٔ کوې مګر زهٔ ستاد درد مند روح آواز اورم چې دبخارپهٔ ډول آسمان ته خيژي.

زهٔ ستاد درد خفيفه ناله اورم چې داسماني سرود اودفداکارۍ د سرود پهٔ شان پهٔ دغه فضاکښې خپريږي.

ستاحقيقت پهٔ دغه شنه اوغلي کښت کښې ځای لري.

زهٔ تاپهٔ همدغه هنداره کښې وينم ای وفادار خدمتګاره !

«کاردوچی »

# دټاګور نغمې

## ۱

هغه ماشوم چې ډیرې ښایسته شاهانه جامې اغوستي دي او دجواهرو قیمتي امیل یې په غاړه دی‌ډیر ښکلی ښکاري مګر د نورو ماشومانوغوندې معصومانه لوبې نشي کولی اوهغه خوشحالي ده هیره کړیده .

دی چې هرقدم اخلي داښایسته جامې یې په پښوکښې نښلي.

لهٔ ده سره تل دغه ډارملګری دی چې کالي یې په خاورو نشي ځکه له نورونه لیرې لیرې ګرځي اویوازې معلومیږي.

دده حرکت آزاد نه دی اوله خاورونه ډیره ډډه کوي.

دماشوم مورې! دماشوم دغه رازپاك ساتل چې دغومره قید او تکلیف ورسره وي ماشوم ته زیان رسوي اوله ډیرخهٔ یې محروموي .

همدغه شی دی نه پریږدي چې دژوند په صحنه او دانسانانو په ډله کښې داخل شي.

## ۲

چیرته چې زړونه له ډاراو ویرې څخه په امن کښې دي اوسرونه هرځای ته هسکیدلی شي.

چیرته چې علم او فکر آزاد دی .

چیرته چې دغه لوی جهان په وړو وړوفکر ونونه کوچنی کیږي .

چیرته چې کلمات دحقیقت اوراستی له کومې څخه راوزي.

چیرته چې بې نتیجې کوښښونه لاس غځوي اومطلب ته رسیږي .
هلته چې دکار اوعمل لاسونه نهٔ دي تړلي.
هلته چې داستدلال دچینې رڼې اوبهٔ دعنعناتووچ ځنګلهٔ ته لاره نلري.
هلته چې ذهنونه اودماغونه نشوونما کوي.
لويه خدايه ! تهٔ مایهٔ دغسې فردوس اوآزاد جهان کښې له خوبه راويښ کړه .

## ۳

لويه خدايه ! زما مناجات دادی.
دافلاس نیلی زمادزړٔنه وشکوه اولرې یې وغورځوه .
ماته توفیق راکړه چې خپلې خوښۍ او مصیبتونه پهٔ آسانۍ وزغملی شم.
توفیق راکړه چې غریب اوبینوالهٔ نظره ونه غورځوم ، او د ډیر بې باکه قوت پهٔ مخکښې هم سرټیټ نکړم.
زهٔ دا توان غواړم چې د دنیا له خسیسو شیانونه ځان وژغورم او خپل قوت خپله مینه ستاخوښې ته وسپارم .

## ٤

بس همدغو مره ارزوراته پریږده چې هر لورته تاپرې ولیدای شم .
پهٔ هرڅهٔ کښې تاووینم اوبیله تانه بل چاته خپله مینه وړاندې نکړم.
هو! زهٔ همدغو مره ارزو غواړم چې یوازې لهٔ تاسره زما تعلق وساتي.
نورڅهٔ نهٔ غواړم ایکې یوه زولانه غواړم چې ماستادرضا پابند کړي

اوپهٔ دغه نیمګړي ژوند کښې زما سروکارله تاسره وي.

دا زولانه دمینې اومحبت زولانه ده .

هغه چې له ماسره مینه لري غواړي چې له هرې خوانه زما مخه ځانته راوګرځوي.

آیا ستامحبت له ماسره دغه رازنهٔ دی ؟

تهٔ پوهیږې چې ستامینه له ماسره ډیره زیاته ده مګربیادې هم زهٔ آزاد پریښی یم .

زما دوستان ماځکه یوازې نه پریږدي چې زهٔ دوي هیر نکړم .

ډیرې ورځې وشوې مګر ما یوځل هم تهٔ پخپلو ؛ ګو ونه لیدې .

که څهٔ هم ماستا نمانځنه پهٔ ځای نکړه اوپخپل زړهٔ کښې مې تاته مناسب ځای جوړنکړی شو مګر بیاهم ستامینه زما مینې ته انتظارلري.

# شاعراوپرښته

شاعر: د اسمان پرښتې ! که زما دسترګو يوه اوښکه او زما دشونډويوه بوسه ستا د پاره کافي وي زهٔ دا دواړه له تانه نهٔ دريغوم.

دا ددې د پاره چې که تهٔ بيرته اسمان ته وخيژې چې زما دعشق يادګار درسره وي مګر له مانه دااميد مهٔ کوه چې زهٔ به دهيلې او اسرې د پاره يادافتخار اوسعادت د پاره حتی چې درنځ او غم د پاره کومه نغمه سازه کړم .

زهٔ غواړم چې خپله ژبه غلې وساتم او دزړهٔ خبرې واورم .

پرښته : شاعره داڅهٔ وايې ؟ زهٔ خودخزان سيلی نه يم چې اوښکې خپله غذا وګنم او دغه دغم اولاد داوبو څاڅکی وبولم.

هغه بوسه چې تهٔ يې ستايې له تانه نهٔ غواړم ځکه چې دبوسې درکولود پاره زهٔ تاته راغلې يم او غواړم چې ستا دوجود له کښت نه بيحاصله ګياه لرې کړم چې هغه دسستۍ او تنبلۍ بوټي دي اودزړهٔ غم نهٔ دی .

ستا غم يوازې پهٔ خدای پورې تعلق لري.

که ستا غم هرڅومره زيات وي تهٔ دخپل زړهٔ دغه مقدس زخم همدغسې پريږده پټې او ملهم پرې هيڅکله مهٔ ږده ځکه چې دبشردلويوالي د پاره لوی لوی غمونه پهٔ کار دي اوبل هيڅ شی يې دغومره نشي لويولی.

شاعره! تهٔ دا ګومان مهٔ کوه چې دغم دښکلا ادراک ته خاموشي ضرورده ځکه چې له ټولونه ښکلې نغمه هماغه ده چې ډيره نااميدي پهٔ

کښې وي.

د زړو شاعر انوجاویدانه آوازونه زما پهٔ یاد دي چې بوده اوتنسته یې له اوښکو او آهونوڅخه اوبدلې ده .

ما هیخور مرغهٔ ستړی او ستومانه دماښام پهٔ تیاره کښې خپل ځنګلهٔ او ځالې ته راشي او خپل بچي وزي ووینې چې دساحل له څنډې ورته رامنډې ووهي او خولې یې دطعمې د پاره وازې نیولې وي نو دې پهٔ یوه لویه تیزه کښینې اواسمان ته پهٔ ډیر حسرت ګوري.

دی پوهیږي چې بیهوده یې دبیحاصله ساحل اوخاموش دریاب پهٔ سربانډې دطعمې د پاره پرواز کړی اوهیڅ یې نهٔ دي موندلي.

سره لهٔ دې بیا هم دی تش لاس نه دی راغلی اوخپل خونین زړهٔ ورسره شته چې خپلو بچیوته یې آخرینه طعمه کړي.

دا مرغهٔ غلی اوآرام پهٔ کته پریوزي اوخپل څیری ځیګرخپلو وزو بچیانوته وړاندې کوي پهٔ دغه وختکښې یې له څنګه وینې بهیږی اودی دمینې پهٔ میومست پهٔ ځمکه پریوزي .

پهٔ دې فدا کارۍ کښې کله دتدریجي مرګ له شکنجې لاندې ستړی شي اوویره ورته پیدا شي چې د ژوند آخرین رمق له لاسه ورنکړي نوځکه نیم ژواندی راپورته شي او خپل وزرونه وڅنډي پهٔ دغه وخت کښې چې دشپې و روستۍ شومه وې دوداع یوداسې مرګانی فریاد له زړهٔ راوباسي چې دریابي مرغان له ساحله تښتي او هغه مسافر چې دسیندپهٔ غاړه تیریږي له وحشته ریږدي اوخدای ته ځان سپاري.

شاعره! تهٔ پهٔ دې پوه شه ! چې دټولو حقیقي شاعرانو سرنوشت

همدغه دی چې دماهیخور مرغه په شان دخپل زړهٔ دوینو دسترخان خپور کړي اوخلك په دغه دسترخان میلمانه اوخوشحاله کړي .

کله چې شاعران له خاورو شوو اسرو، له رنځونواوغمونو، له عشق اوناامیدی نه حکایت کوي د دوي خبرې که هرڅومره ښکلې وي بیا هم له زړونونه غم نهٔ وړي.

د شاعر خبره لکه تیره توره داسې ده چې په هوا کښې حرکت کوي اویوه ځلانده حلقه تشکیلوي مګرپه ځوکه کښې یې همیشه دوینوڅاڅکي لیده شي .

« آلفرد دوموسه »

# غم اوخوشحالي

خوشحالي هغه غم دی چې پلوېې له مخه لرې شویدی.

هغه چینه چې ستاسې خوښۍ او خوشحالۍ ترینه راخوټیږي په حقیقت کښې ستاسوله او ښکونه ډکه ده .

هرڅومره چې دغم شوکارې ستاسو دوجود لوښی وکروي او ژور ځای پکښې جوړ کړي هغومره پکښې دخوشحالۍ د پاره ډیر ځای پیدا کیږي.

آیا ستاسو دغه کنډول چې له شرابونه ډك دی دکلال په داش کښې په اورباندې نهٔ ؤاېښی؟

آیا دغه د دروی شپیلۍ چې په آوازېې ستاسې روح خوشحالیږي په تیرهٔ تیغ غوڅه شوې او جوړه شوې نهٔ ده ؟

کله چې پخپل زړهٔ کښې خوشحالي وینئ کهٔ خپل زړهٔ ته وګورئ دابه درته څرګنده شي چې هماغه څیز چې تاسوېې غمجن کړي یاست تاسې خوشحاله کړي .

کله چې ستاسو په زړهٔ کښې غم پیداشي که پخپل زړهٔ کښې سترګې وغړوئ په دې به پوه شئ چې دهماغه شي د پاره اوښکې تویوئ چې تاسې یې خوشحاله کړي یاست .

څینې خوشحالي لویه ګڼي او غم وړوکی څینې غم لوی ګڼي او خوشحالۍ ته په کمه سترګه ګوري ،زهٔ وایم دوي دواړه یوله بله بیل نهٔ دي او دواړه یو ځای راځي کله چې یوله تاسوسره مخامخ کښیني هغه بل ستاسو په بستر کښې ویده وی.

تاسې لکه دترازو شاهین دغم او خوشحالۍ ترمینځ واقع یاست کله

چې دتلې پلې تشې وي تاسوغلي یاست .

کله چې زړګرپه تاسو باندې خپل زړتلي نودغم یاخوشحالی پله درنیزي او سپکیزي .

«خلیل جبران »

## پارلمان

پارلمان د دولت زړهٔ دی اودحکومت مثال لري چې پهٔ ټولوغړویې فرمان چلیزي .

که دماغ له کاره ولویزي سړی ژوند کولی شي لکه لیونیان اواحمقان چې ژوندی دي مګر که زړهٔ کارونکړی شي ژوند ختمیزي .

(روسو)

# ژوند

دامهٔ وایه چې ژوند یودایمي بزم دی څُکه چې داخبره احمقان کوي.

داهم مهٔ وایه چې ژوند تل ترتله مضیبت دی څُکه چې دادبې زړهٔ اوضعیفوخلکو خبره ده.

لکه چې دونوشنې څانګې پهٔ پسرلي کې له خوشحالۍ ریزدي خانده !

لکه چې دسیند موجونه پهٔ لویو ګټولګیزي او فریاد کوي ژاړه!

دجهان ټول خوندونه وڅکه اوټول دردونه وزغمه بیا ووایه هرڅهٔ چې دي ډیردي مګرلهٔ خوب او خیال سره شباهت لري.

«پادیامانتوپولس»

## قوت اوجرئت

دسیندپهٔ اوبو کښې مخ پورته تلګ قوت او جرئت غواړي اوداوبوله جریان سره موافق تلګ مړه کبان هم کولی شي.

«اسمایلز»

# تاریخ

هغه چاته لوی اوواړه څهٔ فرق نلري چې هرڅهٔ دهٔ پیدا کړيدي اودټولو خالق دی.

هرچیرته چې هغه شته هرڅهٔ شته اوهیڅ ځای نشته چې هغه پهٔ کښې نشته.

زهٔ له دومره کوچنیتوب سره چې هیڅ نه یم هرڅهٔ یمه .

ځکه چې دځمکې ، دستوروادشمسي کال اولادیم .

زه له هغې خاورې پیدایم چې دقیصر لاس، د افلاطون ماغزه، دمسیح زړهٔ اودشکسپیر نبوغ یې پهٔ ذراتو کښې ګډ دی.

«امرسن »

# لوړه پایه

پهٔ دغه جهان کښې دهرچا دلوړیـو د پاره یوه پله اوپایه پهٔ کارده چې هغه درد او الم دی.

«اناتول فرانس »

# بدبختي

بد بختي ده چې عقل اوپوهه تربیه کوي .

«هوګو»

# عقل

که غوارې چې دعقل په زیان اوضررپوه شې دا ومنې چې عقل هغه قوتونه په سري کښې وژني چې ژوندپرې ولاړ دی.

ژوندون په عمل اواراده ولاړدی.

غوښتنه اواراده دهرپیشرفت اصل اواساس دی.

څومره چې عقل زیاتیږي هغومره اراده ضعیفه کیږي .

که انسان په هرڅۀ پوه شي یقین وکړه چې بیا به هیڅ نۀ غواړي او هیڅ ارزو به ورسره نۀ وي یعنې اراده به نلري.

عمل له ارادې څخه پیدا کیږي او اراده له آرزو څخه .

دا دواړه له هغه شي سره نۀ یوځای کیږي چې دحکیمانو اوفیلسوفانو په برخه رسیدلي دي یعنې تردد اوتأمل .

زۀ ډیرې پوهې له ژوند څخه عاجز کړی یم .

ډیرفکردسړي قوت اومقاومت کموي.

ناپلیون سزار اود دوي امثال هغه کسان نۀ ووچې ډیرفکر کوي ځکه یې هغه څۀ وکړی شو چې زړه یې غوښتل .

«اناتول فرانس»

# ترقي او تکامل

زهٔ پهٔ دې عقیده یم چې دبشرتکامل پهٔ ډیر ځنډ انجام مومي .
ددنیاسیر ډیر بطي دی.دبشرنبوغ پهٔ تقلید کښې دی او دابتکار خونده یې نشته .
لکه چې پهٔ فزیك کښې دثقل قانون موجود دی چې زموږتعلق دځمکې له زړې کرې سره ساتي پهٔ روان شناسۍ کښې هم دغه قانون وجود لري او زموږ دلچسپي له زاړه جهان سره ټینګوي.
ګویتې هم ویلی دي چې خلق لا داصلي ګناه داتمی برخې پهٔ اختراع نهٔ دي بریالي شوي .

«اناتول فرانس »

## دژوند ضروري شرط

ناپوهي یوازې دنیکبختۍ لازمي شرط نهٔ دی، د ژوند ضروري شرط هم دی.
که موږ پهٔ هرڅهٔ پوه شویوساعت هم دژوند تحمل نشوکولی.
هغه احساسات چې ژوند موږته ښهٔ ښکاره کوي یاژوند راته دتحمل وړښیي له دروغوڅخه زیږي اوپهٔ موهوماتوباندې تغذیه کیږي .

«اناتول فرانس »

# علم او اخلاق

له علم څخه دیوې اخلاقي نتیجې امید لرل ډیره لویه اشتباه ده .

دري سوه کاله پخوا خلك په دې عقیده وو، چې ځمکه دخلقت اوپیدا کیدو مرکزدی اونن موږ پوهیږوچې دلمریوه منجمده ټوټه ده .

اوس پوهیږوچې دستوروپه سطحه کښې څه ګازونه سوځي.

په دې هم پوه شوي یوچې دغه جهان چې موږپکښې دګرداوغبار یوې ذرې غوندې یوتل دجوړولواوورانولوپه حال کښې دی.

موږته دامعلومه شوه چې پرله پسې ځینې ستورې پیدا کیږي اوځینې له مینځه ځي مګر دغو خارق العاده اکتشافاتوزموږ په اخلاقوکښې څه تغییررانووست.

ایانن مینډې له خپلو بچیانوسره له پخوانه زیاته مینه لري. ؟

یادغه مینه له پخوانه کمه شویده ؟ آیا اوس دښکلاپه احساس کښې له پخوانه څه زیادت یا نقصان راغلی دی؟

ایا نن دزړوروقهرمانانوپه زړه کښې له پخوانه څه فرق لیدل کیږي؟

ځمکه لویه وي اوکه کوچنۍ وي دبشرپه حال کښې څه تغیر نه راولي. زمکه لویه ده په دې شرط چې غم اورنځ پکښې وي اوعشق موجود وي .

غم او عشق دغیر فاني ښکلاجاویداني مر کزونه دي.

غم یوداسې نعمت دی چې قیمت نلري.

هغه ښیګنې چې په ځان کښې وینو او هغه څه چې ژوند زموږ په نظر کښې ښه ښکاره کوي دهمدغه لوی نعمت اغیزه ده .

زموږ ترحم ،شجاعت شهامت، اونور ټول فضايل او ملكات دهمدغه شي مرهون دي.

اخلاق طبيعتاً پهٔ احساساتو باندې تكيه لري اوبس.

«اناتول فرانس»

# فكراواحساسات

تاسې واياست چې دټولو مصيبتونو اوبدبختيو علت زموږفكردی.

كه غواړئ چې دفكر پهٔ نحوست قايل شئ بايد پهٔ قدرت او عظمت كښې يې ډيره مبالغه وكړئ مګرپهٔ دې خبره بايد پوه شئ چې فكر پهٔ احساساتواوغرايزوباندې ډير لږ تسلط لري.

هغه خلك چې دفكر له تأثير لاندې ډيرزيات راغلي دي هغوی هم دنورو پهٔ شان متكبر شهواني او بخيلان دي.

چيرته چې تمدن ډير وړاندې تللی هلته هم هغه كارونه ډيرلږ دي چې پهٔ فلسفي اصولو اجراكيږي .

موږ دغرايزو او احساساتوپهٔ مقابل كښې دومره ضعيف او ذليل يوچې زهٔ هيڅكله يوهٔ داسې شعوري حالت ته نشم قايليدلی چې له طبيعي حالت سره مخالف وي .

«اناتول فرانس »

# تمسخراوترحم

هرځومره چې دانسان پهٔ ژوندانه کښې ډیر فکر کوم هغو مره راسره داعقیده ټینګیږي چې باید دبنیادم داعمالو شاهد اوقاضي تمسخر او ترحم وي.

دا دوه ښهٔ مشاوران یوپخپله خنداژوند زموږ پهٔ نظر کښې محبوب کوي اوبل پخپله ژړا ژوند راته مقدس ښکاره کوي.

هغه تمسخر چې زهٔ یې لرم بې رحمه نهٔ دی ، پهٔ عشق اوښکلاباندې ملنډې نهٔ وهي بلکه ډیر ملایم اونیکو کاردی.

د دهٔ پهٔ خندا قهرسړیږي اوموږ ته دابښیي چې باید داشرارو اواحمقانوپهٔ مقابل کښې له تمسخر نه کار واخلو .

که داحس له موږ سره نهٔ وي نوزموږ پهٔ زړهٔ کښې هرګوره نفرت پیدا کیږي.

«اناتول فرانس »

# دخلکو انتظار

خلك هروخت پهٔ اجتماعي چارو کښې ډيرولويوتغييراتو ته انتظا ر لري.
داهغه دايمي اشتباه ده چې دغيب ويلوله روح نه يې نشأت کړيدی.
زهٔ دامنم چې ژوند پهٔ رښتيابې ثباته دی او ژوندي شيان تل تغييرکوي مگر داتغييرمحسوس نهٔ دی.
ددنيا هره ترقي ډيره ځنډنۍ اومنظمه ده .
ناڅاپي او سريع تغييرات هيڅکله نهٔ دي پيدا شوي اونشي پيدا کيدای.
ټول اقتصادي تحولات دطبيعی قواؤ پهٔ رحيمانه ځنډ انجام مومي.
داخبره زموږ له احساساتو سره مخالفه وي او که موافقه مگر يومنلی حقيقت دی چې هرڅهٔ هماغه شان دي چې پخوا ؤ .
زموږ اجتماعي وضع دهماغه اوضاعو او کيفياتونتيجه ده چې دمخه موجودؤ لکه چې علت اوسبب هغو احوالوته ويل کيږي چې وروسته تردې به موجودشي.
ذا تسلسل ترډيره وخته ديوه حال ثبات ساتي اوپهٔ ژوند کښې نظم او آرامتيا پيدا کوي.
داخبره رښتيا ده چې دغه حال نه هغه ارواګانې خوشحالوي چې دنووشيانو ډيره تنده ورسره ده اونه پهٔ هغو زړو نوکښې خوښي اچوي چې شفقت پهٔ کښې نشته مگر دجهان نظم همدغه تقاضالري اوموږ بايدتن ورته کښيږدو .
موږبايد پخپل زړهٔ کښې يوڅهٔ حرارت اوله ځان سره څهٔ اشتباهات ولرومگرآنی او عجيب وغريب موفقيتونه ونهٔ غواړو اودمعجزې انتظار ونلرو.

«اناتول فرانس »

# خطرناک

موږ ته هغه کسان خطرناک ښکاري چې روحیه یې زموږ له روحیې نه مخالفه وي.

هغه چې زموږ خویونه پکښې نشته موږ ورته بداخلاقه وایو.

څوک چې زموږ په اشتباهاتو مبتلانهٔ وي موږته شکاك معلومیږي اودافکرنهٔ کووچې هغوي به په نوروشبهاتومبتلاوي.

«اناتوك فرانس»

# د ژوند انه مخ او څټ

ژوند لکه دزربفتوټوکی مخ او څټ لري. هغه ښکلاچې په مخ کښې شته په څټ کښې نشته مګر دټوټې او بدانه (بافت ) له مخ نه په څټ کې ښهٔ لیدل کیږي .

«شوپنهاور»

# ليونتوب او حماقت

زهٔ باور لرم چې بشرپهٔ هروخت او پهٔ هرځای کښې دخپل مصرف د پاره دجنون اوحماقت کافي ذخيره لري.

داسرمايه هرڅنګه چې وي بې حاصله نهٔ ده .

کله چې ګورم چې يوه پخوانی اشتباه ورکه شوه بې له دينه چې پهٔ دغه کا رخوشحاله شم دبلې اشتباه پهٔ باب کښې فکر کوم چې دزړې اشتباه ځای نيسي.

زهٔ پهٔ ډير تشويش له ځانه پوښتنه کوم چې آيادغه نوې اشتباه به له زړې نه ډيره خطرناکه نهٔ وي؟ که ښهٔ فکروکړو زاړهٔ او هام او زاړهٔ خرافات له نوونه لږ زيان لري ځکه چې هغه دزمانې پهٔ مرور صيقل شويدي اوضررېې کم شويدی .

«اناتول فرانس»

## پهٔ ځان باور

هرڅوك چې پهٔ ځان باندې اطمينان او باور لري خلك دهغه ملګري کيږي .

پهٔ ځان باوريو داسې صفت دی چې دهرچاخوښيږي .

خلك له قطعي اويقيني مطالبو سره مينه لري نه له دلايلوسره.دليل او برهان دوګړواندېښنه اوپريشاني زياتوي .

اوس ساده ګي خوښوي اوپهٔ ساده خبروپوهيږي.

خلکو ته بايد څنګه او څهٔ رازونه وايوبلکه هويانه ورته ووايو اوبس.

«اناتول فرانس»

# تعصب

تعصب او عد م ا غما ض په هرعصر کې شته .

هرڅه چې زموږخوښ وي زموږپه نظرکښې لوړمعلومیږي او نمانځنه یې کوو. که څوك مو ز مـــه زموږد بتانوعیب ښکاره کړي خوا بدي کیږو.

خلك په مشکله دېته حاضر یږي چې د خپلوعقاید وپه منشأ اومنبع کښې لږغونډې ایرادقبول کړي.

که چاپخپلواصولواومعتقداتوکښې غوراوفکرکولی هیڅکله به نه وو معتقد شوي.

«اناتول فرانس»

## ځان وپېژنه

داخبره چې ځان وپیژنه دیوناني فلسفې له حماقتونوڅخه یولوی حما قت دی.

موږبه هیڅکله نه ځان وپیژنواونه نور.

ټول مشکلات په همدغه ځای کښې دي اوپه همدغې موضوع پورې ارتباط لري.

د دنیاجوړول دومره ګران کارنه دی لکه پیژندل یې چې ګران کاردی.

ښایي چې بشري نبوغ یوه ورځ یوه نوې دنیاجوړه کړی شي مګرداتوفیق به هیڅکله ونه مومي چې پرې پوه هم شي .

دبشرپه پوهه اونبوغ باندې دا ډیره لویه تعد ي ده چې دحقیقت په لټون کښې په کارولویږي .څه شی چې له پوهې نه پکښې استفاده کیږي داشیاؤلږغونډې حقیقت پیژندل اوترینه خوند اخستل دي .

« اناتول فرانس»

# شخصیت

موږغواړوچې خپل شخصیت له ځان سره هغه بل جهان ته هم یوسوله موږسره داعقیده موجوده ده چې که څوك ځان هلته ونهٔ پیژني هرسعادت چې ددهٔ پهٔ برخه وي پهٔ دهٔ پورې به څهٔ ربط نلري بلکه دبل چا مال به وي .

له دینه غافل یوچې زموږ شخصیت دلته پهٔ دغه جهان کښې هم محفوظ نه دی اوپهٔ ژوندانه کښې څوځله یورازاوبل راز کیږي .

زهٔ چې اوس له اتیا کالونه اوښتی یم له هغه شل کلن «موریس میترلینګ » سره هیڅ شباهت نلرم بلکه هغه هیڅ نهٔ پیژنم.

همدارنګه له هغه لس کلن هلك سره هم مشابه نهٔ یم چې یوه شیبه هم پهٔ ځای نهٔ ؤناست اوتل به پهٔ لوبه مشغول ؤ.

ماته اوس هغه پردی اوبیګانه معلومیږي .

هرکله چې پهٔ دې نړۍ کښې زموږ شخصیت بدلیږي نوبیا ولې داانتظار لروچې هغه بل جهان ته به یې هم له ځان سره وړو .

«مترلینګ »

## بقـــاء

پسونه دطبیعت دسختیو په مقابل کښې مقاومت نشي کولی .
که انسان دغه نوع دخپل خوراك د پاره نه وای ساتلی اوس به یې
نسل ورك وُ مگر اوس چې دغه حیوان په دنیا کښې ژوندی پاته دی څهٔ
سعادت یې په برخه نه دی ځکه چې دوژلو او خوړلود پاره یې ساتلی دی.
هرحیوان اوهریوتی چې دلته وینئ ، سر نوشت یې همدغه دی .
کاني او معدنیا ت هم دغه راز دي مگر زموږ عمر دومره نه دی چې د
دوي تغیروونو اوپه بدبختی یې پوه شو.

«مترلینك »

## کـــب

هغه کب چې یوازې ژوند کوي اوهغه کبان چې په یوه ځای کښې گډ
ژوند کوي په یوه اندازه پوهه لري مگر سره له دې ډیر کبان شته چې
یوازې یوازې نهٔ اوسیږي.
.موږ نهٔ پوهیږوچې د دوي داجتماع سبب څهٔ شی دی؟
ښایي چې دوي به دځینو ځناورو اوبلاگانوله ډاره اودځان ساتلود پاره
یوځای شوي وي مگر همدغه گډ ژوند اویوځای اوسیدل ددې سبب
وگرځیده چې انسان یې ژرښکارکړي.

«مترلینك »

# هغه چې دنيا ته رانغله

په مليار دونو نطفې ضايع کيږي او په دې باب کښې تاسې ډير افراط کوئ.

ستاسو ښځې ډيرې لږې نطفې قبلوي چې هغه په انسانانو بدليږي.

هغه نطفې چې ضايع کيږي او څه ترينه نه جوړيږي ستاسو د خوا بدۍ او خپګان موجب نه ګرځي.

تاسو ته معلومه ده چې دغه په سلهاؤ زرو مليار دونو نطفې چې په هره پيړۍ يا نيمه پيړۍ کښې له دې جهانه ځي او هيڅ ترينه نه جوړيږي د انسانيت توان په کښې شته او بالقوه انسانان ورته ويلی شو مګر دوي ته هغه چانس نه پيداکيږي چې موږ غوندې انسانان شي لکه چې موږ ته هغه چانس په لاس نه راځي چې د مشتري کره رانه جوړه شي او هغو-مره عمرو لرو.

آيا دغه بالقوه انسانان د فکري او معنوي ژوند خاوندان وو او که نه؟ که نه وو نو څنګه ورته بالقوه انسانان ويلی شو ؟

او س چې دوي مړه شو او موږ غوندې نشو آيا د دنيا په اوضاعو کښې څه تغيير راغی؟ ايا د دوي ځای تش پاته شو او هغه کارچې بايد دوي سرته رسولی وای سرته ونه رسيده ؟

«مترلينك»

# څنګه به یو؟

موږ غواړو چې په هغه بل عالم کښې هم خپل ځان وپیژنواو پوه شو چې ته «اسمیت» یې اوزه «موریس» یم مګر دانه ده معلومه چې هلته به خپل کوم شخصیت غوره کوو؟

ایاته به داغواړی چې دغه اوسنی شخصیت درسره وي که دزلمیتوب یاد کوچنیتوب د دورې شخصیت.

موږته داهم نه ده معلومه چې زموږدبدوکارونوسزابه زموږ کوم شخصیت ویني ؟هغه به دغه موریس وي چې اوس له اتیاکالونه اوښتی دی که هغه شل کلن موریس به وي چې بیل شخصیت یې درلود.

په رښتیا چې موږ تراوسه نه یوپوه شوي چې په څه صورت به دخدای حضورته وړاندې کیږو، سپین ږیري به یو که ځوانان او که ماشومان؟

«مترلینك»

## ستاسوفکر

ستاسې فکر چې هرڅه وي تاسوهماغه یاست.

هیڅ امکان نلري چې څوك له خپل فکره لوی شي یادخپل فکر له حدودو څخه تجاوز وکړي.

«مترلینك»

# کۀ طبابت ترقي وکړي

بنايی چې يوه ورځ طبابت دومره ترقي وکړي چې طبيبان دسړی زړهٔ، سږي اونورزاړهٔ له کاره وتلي شيان بدل کړي اودسرپهٔ کوپړی کېښې هم نورماغزه واچوي .

هرکله چې زاړهٔ ماغزه بدل شي نوطبعاً دغه حافظه هم نهٔ پاته کيږي چې دتيرژوند پوهه او معلومات ، کينه اومينه يانورخاطرات پکښې ساتلي دي. چې داحافظه لاړه شي هغه شخصيت هم درومي چې له دغې حافظې سره ټينګ تعلق لري.

پهٔ دغه صورت کښې بيا څوك خپل ځان نشي پيژندلی اوپهٔ دې نهٔ پوهيږي چې زهٔ څوك يم ؟يعنې دده اوديوه مړي ترمنځ به څهٔ فرق نهٔ وي مګر څېره اوتنه به يې پهٔ کوڅو اوبازاروکښې حرکت کوي.

دازيان چې دمغزوله بدلون څخه سړي ته رسيږي دمرګ او مړينې له زيانه کم نهٔ دی.

دغه جسد چې وروسته ترديې دلته اوهلته ګرځي هغه پخوانی سړی نه دی بلې څوك دی . هرتندر چې پهٔ ده پريوزي پهٔ هغه پخواني شخص پورې څهٔ تعلق نلري بلکه پهٔ يوه بل ناآشناسړي پورې ربط پيدا کوي.

«مترلينك»

# څهٔ غواړئ ؟

که پاك خدای له تاسونه پوښتنه وکړي چې څهٔ غواړئ ؟
تاسوبه پهٔ جواب کښې څهٔ ووایاست ؟
آیا داسې ژوند به وغواړئ چې تل ترتله وي او هیڅ زړښت اوهیڅ راز بدبختي هیڅ تغیر پهٔ کښې نه وي.
دغسې ژوند خوعیناً دهغه غټ کاڼي حال ته ورته دی چې پهٔ ملیونو کاله پهٔ یوه ځای پروت وي او هیڅ تغییر اوتحول پکښې نه راځي.
زهٔ یقین لرم چې که تاسې دجاویداني عمرپهٔ حقیقت پوه شئ. هیڅکله به یې له خدایه ونهٔ غواړئ.
جاویداني سعادت هم دجاویداني عمرپهٔ شان دی یاپهٔ بل عبارت جاویداني بدبختي ده .
«مترلینك»

## پوه اوناپوه

داچې پوه اوناپوه یودبل پهٔ ژبه نهٔ پوهیږي سبب یې دادی چې پوه پهٔ هغه شي بدلیږي چې دی پرې پوه شویدی.
دی هغه څهٔ ناپوه ته نشي ویلی چې ددهٔ پهٔ زړهٔ کښې ځای لري.
که تاسې یوه ورځ دجهان پهٔ اسراروپوه شئ پخپله به هماغه اسرار شئ اوماته به دخپل زړهٔ خبرې نشئ کولئ !
«مترلینك»

# لیـونی

ماته وایي ته هم لیونی شوی یې لکه ځینې فیلسوفان چې په آخر عمر کښې لیونیان کیږي او چتیات وایي.

ښایي چې زه لیونتوب قبول کړم ځکه چې تراوسه پورې لادلیونتوب اوهوښیارۍ ترمینځ عقلاني تفاوت نه دی موجود مګرتاسوچې هوښیاران یاست فکر وکړئ چې څه وایئ ؟

«مترلینګ»

# مـرګ

که مرګ په دنیا کښې نه وای هیڅابه د ژوندانه درانه بارته غاړه نه وای ایښی همدغه دمرګ ویره ده چې موږ ژوند کوو او ددغه ډاریه وجه ترزړښته پورې د ژوندانه پیټي په اوزووړو.

«مترلینګ»

# روح

که له مانه پوښتنه وکړئ چې روح څه شی دی؟

زه تاسوته څه ځواب نشم ویلی مګرله تاسونه به پوښتنه وکړم چې جسم څه شی دی؟ هرکله که موږ جسم یا «ماده» وپیژنو دروح په پیژندلو به هم بریالي شو مګر اوس چې یو هم نه پیژنوباید په دې باندې ځان خوشحاله کړو چې روح د جسم حرکت دی او جسم د روح (شکل اوصورت ) دی.

«مترلینګ»

# افلاطون

که دیونان افلاطون څهٔ د پاسه دوه زره کاله پس موږ ته راشي موږبه کومه موضوع ده ته وړاندی کړو چې دده دتوجه وړوي اودی څهٔ قدرته حیران کړي.

پهٔ اخلاقي ،اجتماعي اوسیاسي لحاظ که موږ مریتوب لغوه کړیدی خوځو ډوله بل رازغلامي پیدا شویده چې هغه ځای یې ډك کړیدی موږ کوم نوی شی نلرو چې هغه ته یې وړاندی کړو.

زموږ سیاسي ، اجتماعي او اخلاقي دروغ دهغه د پاره کوم نوی مضمون نه دی او اوسنی سلوك هغه ته څهٔ نویتوب نه لري.

پهٔ فزیك ،شیمی ، ژوند پیژندنه ، طبابت او جراحی کښې چې څهٔ کشفیات شویدي پهٔ اول کښې به دی پهٔ تعجب کښې واچوي مګر ددې لامله چې هغه ډیر موشګاف او ځیر کیدونکی دی ډیرژربه پوه شي چې زموږ کشفیاتودروح دپاره کومه نوې غذا نه ده پیداکړې اوداسراروله مخې پرده نه ده پورته شوې .

څهٔ شی چې دهغه پوره توجه ځانته راګرځولی شي هغه بې سیمه موجونه دي چې پهٔ یوه شیبه کښې هرځای ته غبز رسوي ،ممکنه ده چې دغه شی ددهٔ ارتباط له هغو اسراروسره پیداکړي چې پهٔ مبهم ډول یې پخپلو کتابونو کښې ورته اشاره کړیده .

پهٔ هرحال کوم دتوجه وړشی چې پهٔ دوه زره کالو کښې موږکشف کړیدی همدغه دی چې دعلت پهٔ ادراك یې لانه یوموٌفق شوي اودانه ده معلومه چې دوه زره کاله وروسته به دتوجه وړڅهٔ شی کشف کړو.

«مترلینك »

# زموږپوهه

موږ دفولادوپهٔ یوه تړلې خونه کښې ژوند کووچې دوه وړوکې سورې لري اوبس .

له یوه سورې نه لزغوندې رڼا راځي اوله بل نه لږ غوندې اواز راننوزي موږله همدغودووسوریوڅخه دجهان اوضاع معلوموو او همدغه وجه ده چې بې له رڼا اوبې له غږه پهٔ نور څهٔ نهٔ پوهیږو .

«مترلینك»

# بدې خــبرې

بدې اوناوړه خبرې چې زیان اوضررلري ډیرې ژر خپریږي ښې او حسابي خبرې چې فایده پکښې وي ژرنهٔ خپریږي .

هو! بدې اوناکاره خبرې لکه تلونکې او خپریدونکې ناروغي له یوه نه بل ته اوله بل نه بل ته ځي .

ښې خبرې لکه صحت او روغتیا له یوه نه بل ته نه درومي.

«مترلینك»

# انساني سلوك

انسان باید هغه مینه چې له نورو سره یې کوي له ډېر لوړځایه واخلي او په ډېرلوړهمت له نوروسره وچلېږي .

ترڅوچې ممکنه ده چې خلکوته دعشق په نظروګوري نه ښایي چې دخپل ترحم اوشفقت سیورې په چاباندې وغوړځوي .

ترڅوچې دعدالت له مخې چاته څه ورکولی شي نه ښایي چې داحسان له مخې چاته څه وبخښي .

ترڅوچې دچااحترام کولی شي نه ښایي چې دهغه دلجویي اودلداري وکړي

« مترلینك »

# انساني کمال

هغه لوی کمال چې دتحول او تکامل په لاره کښې د ژوند یو شیانو په برخه رسیدلی دی قلبي عواطف دي چې په انسان کښې لیده شي.که څوك غواړي چې له حیواناتونه لرې وي باید دغه عواطف چې رحم، مروت ، کرم ، شجاعت اونوعه پرستي ده په ځان کښې وروزي.

«داروین»

# دفکر روزنه

څه شی دی چې په بشر کښې ژور فکرونه روزي ؟

علم اوپوهه ، نه ده ، کارنه دی ، دعواطفو اواحساساتو هیجان هم نه دی یوازې رنځ او مشقت دی چې دانسان په فکر کښې ژور والی پیدا کوي اوښایي چې دهمدې لامله په دنیاکښې غمونه اورنځونه ډېر شوي وي.      «هیز»

# ښکليتوب

کله‌چې ښکليتوب د دعوې د پاره راولاړشي دهرناطق ژبه کلي کيږي.

« شکسپير »

# ښايست

ښايست هغه ميلمه دی چې پهٔ هرکور کښې قدراو عزت لري.

«گوته»

## سياست مدار

که يوسياستمدارجنايت وکړي ښايي چې عفوه شي مگر که دخبط مرتکب شي نودعفوی وړنهٔ دی.

«بيسمارك»

# غولول

ټول تريوه وخته غوليږي ځينې دهميشه د پاره هم غولولی شي مگرټول دهميشه دپاره نه غ لبږي.

« اهام لينکلن »

# فکر په شعر کښې

فکر باید په شعر کښې داسې پټ وي لکه غذايي خاصيت چې په میوه کښې پټ دی .میوه هم غذاده مگر لذیذه چې دخوړلو په وخت کښې بې له لذته دبل شي احساس نهٔ کوو. خوبدن ترينه غذايي ماده اخلي او دغه غير محسوسه غذا په لذت کښې پټه ده .

«پل والري»

# بدبختي اوشعر

د بدې ورځې خاوندان دمصيبت اوناکامی په وخت کښې شعرته مخه کوي او څهٔ چې دوي له رنځ او غم نه زده کړي وي په اشعارو کښې يې نوروته وړاندې کوي.

«شللی»

# عشق او سعادت

هغه څوك ډير نيکبخت دی چې خدای ورته داسې زړهٔ ورکړيدی چې دعشق او سوزوگدازلايق دی .

چاچې دعالم اوضاع اودانسان زړهٔ دعشق په دوه مخيزه هنداره کښې نهٔ دی ليدلی هغه هيڅ حقيقت نه دی ليدلی اوپهٔ هيڅ نهٔ دی پوه شوی.

«هوگو»

## پوهه او عشق

پوهه دعقل په غیز کښې پرورش نه مومي بلکه دعشق په لمن کښې وده کوي دپوهې نیالګی باید دعشق په ګلدان کښې وکرل شي اوداحساساتو په اوبو آبیاری شي.

«مترلینګ»

## ښوونځی

دعلم اوپوهې هرښوونځی چې پرانیستل کیږي د زندان دروازه تړل کیږي.

«هوګو»

## دفکر پانګه

دفکر اوپوهې ټوله پانګه باید یوه روحي او اخلاقي عظمت ته تسلیم شي.

«مترلینګ»

## معرفت

معرفت هغه شی دی چې وروسته دهرڅه له لوستلو او دهرڅه له هیرولونه په دماغ کښې پاته کیږي.

«ادوارد هریو»

## علم او علماء

علم له خطاڅخه خلاص دی مګر علماء تل په خطا کښې وي.

«اناتول فرانس»

## ځان ښودل

یاځان هغسې وښیه چې یې یاهغه شان اوسه چې ځان ښیې!

«بایزید بسطامی»

## دښهٔ کار علت

که زموږ دښوکارونو علت او سبب څرګند شي ډېر کسان به پخپلو ښوکارونوخپاوخجل شي.

«ریواردل»

## تاج او قلم

ترڅوچه د ادب قلم زمایهٔ لاس کښې دی هیڅکله به ونهٔ وایم چې ولې مې شاهي تاج پهٔ سربانديې نشته .

«ولتر»

## مطبوعات او تاریخ

مطبوعات داوسني تاریخ اساس او بنیاد دی موږ باید خپل تاریخ مشوش نکړو. څوك چې دمطبوعاتو ازادي محدودوي دوطن او ملت تاریخ ته زیان رسوي.

«پوانکاره»

## حکومت او روزنامه

که له مانه پوښتنه وکړې چې په وطن کښې بې روزنامې حکومت وي که بې حکومته روزنامه؟ زه به هرګوره دوهمه خبره غوره کړم.

«جفر سن»

## دځان سعادت

که یوازې خپل سعادت وغواړو څهٔ ګرانه خبره نهٔ ده مګر موږ غواړو چې له نورونه زيات مسعود شو او دا کار ډير مشکل دی ځکه چې نور هغو مره مسعودنهٔ دي لکه چې موږ يې تصورکوو.

«منتسکوی»

## ځان مسعود ګڼل

يوازې داکافي نهٔ ده چې دسعادت خاوندان شو بلکه پهٔ دې پوهيدل پهٔ کار دي چې موږ دسعادت خاوندان يو .

«مترلينك»

## اجبار او اختيار

څومره چې دوجود مرتبه او درجه لوړيږي هغو مره اجبار کميږي او اختيار زياتيږي. همدغه سبب دی چې دکانې مجبوريت له بوټي اونيالګي نه زيات دی او حيوانات له نباتاتونه هم زيات اختيارلري انسان بيا له حيوان څخه هم پورته دی او ډير اختيار لري .

«بوترو»

## عقل او زړهٔ

عقل د زړهٔ پهٔ خوښه کارکوي او زړهٔ ته ګوري هغه څهٔ چې زړهٔ يې نهٔ غواړي عقل پکښې لاره نشي پيدا کولای يعنې زړهٔ پهٔ سربانډې حکومت کوي او سرپهٔ زړهٔ حاکميت نلري.

«شوپنهاور»

## کینه او مینه

کینه او مینه دنفسي احوالو او کیفیاتوله اختلافه پیدا کیږي اوپهٔ عقل پورې څهٔ اړه نلري.

«شوپنهاور»

## احتمالي مصیبت

هرڅهٔ پخواله وخته پهٔ نظر کښې نیول او لرې کتل ښهٔ کاردی مګر دسباورځې پهٔ احتمالي مصیبت نن غمجن کیدل ښهٔ کار نهٔ دی.

له دینه چې پهٔ هواکښې ځانته زندان جوړوو ولې یوښهٔ قصرنه جوړوو. «٠»

## لیاقت لرل

لیاقت لرل اوکوم ځای ته نه رسیدل له بې لیاقته رسیدلو نه ښهٔ وي.

«٠»

## شهامت

که بتان مات کړې کوم سترکار دې نهٔ دی کړی.

حقیقي شهامت دادی چې پخپل ځان کښې دبت پرستۍ خوی ورک کړې.

«نیچی»

## لوی خلك

لوی خلك لکه سیندونه خپل هدف ته بې لارې درومي او د دوي شهامت همدغه دی چې له ګرانو اوپرپیچه لاروڅخه نهٔ ډاریږي .

«نیچی»

## اجتماع

پهٔ اجتماع کې داخل شه ! ځکه چې پهٔ جمعیت کښې سړی صیقل کیږي او ټینګیږي . یوازیتوب سړی ملایم کوي اوفاسد وي یې.

«نیچی»

## دجنګ اساس

دغلیم غولول دجنګ اساس دی ځکه زما هغه پټه زغره چې ماړغوستې ده دګیدړپوټکی دی.

«نیچی»

## نجیبه غریزه

هغه غریزه چې له ټولو غرایزونه نجیبه ده نجابت یې پهٔ ډیر احتیاط زیاتوه یعنې پهٔ هرکیلو محبت چې له نوروسره یې لرې یوګرام نفرت له ځان سره زیات کړه .

«نیچی»

## شهرت اوشرافت

که پهٔ افتخار او شهرت پسې گرځې نو زماپندمهٔ هیروه ! هغه دا چې له شرافت نه لاس واخله ! .

«نیچه»

## هدیه قبلول

زهٔ دهغه چاله خوشبختۍ نه خبر نه یم چې دخلکوله لاسه هدیه قبلوي ځکه چې له ماسره داعقیده موجوده ده چې له هدیې قبلولونه غلابنهٔ ده .

«نیچه»

## هیرول

هرڅهٔ هیر کړه هرڅهٔ هیر کړه هیرول ډیرلوی هنر دی!
هغه دروند بارچې له تاسره دی له ځانه وغور ځوه .

که غواړې چې والوزې که آرزو لرې چې له لوړواوهسکوڅو کوسره آشناشې درانه اوسنگین شیان سیندته وغور ځوه .

دغه دی سیند هله ژرشه خپل ځان سیندته وغورځوه دهیرولوهنرډیرلوی هنردی .

«نیچه»

# ځان غوښتنه

خود خواهي او ځان غوښتنه په مطلق ډول له ژوند سره موافقت نه کوي .

یوازې ځان غوښتل په حقیقت کښې ځان محدود کول اوله ځانه څه کمول دي .

که جود اوفیض نه وي ژوند نشته.

په حقیقت کښې بشپړه اوکامله خود خواهي په پوره غیر خواهۍ کښې پټه ده او اخلاق هیڅکله انفرادي کیدلی نشي.

«ژان ماری کویو»

## مکررات

په دغو ګڼو لیکنو کښې چې علم اوپوهه ډیره زیاته ښیي څه وینئ ؟

سترګې وغړوئ اوښه وګورئ چې غیر له مکرراتونه نورڅه وینئ ؟

آیا داټولې خبرې چې په یوقسم موضوعاتوکښې اورئ بې دسبك اوانشاء له تنوع اوبې دشواهدو او مثالونوله رنګینۍ یادچاپ له ښکلیتوبه نورڅهٔ لري؟

د دې خبروحقیقي تأثیر ،عمق او ارزښت همدغه دی چې په راز راز پیرایو کښې بیا بیا ویل کیږي اوله یوه مخه په بل مخ اوړي.

نوپهٔ دغه ظاهري ثروت کې فقراولوزه پټه ده اوپهٔ دغه رو ژه کښې دمړښت احساس کیږي.

«بیکن»

# نیـــکي

په سترګوکښې دلیدلوقوه یوازې نهٔ ده کافي.

که زموږ سترګې بیناهم وي اوپهٔ اشیاؤ کښې رنګونه هم موجود وي بیاهم رڼا ته محتاج یواوپهٔ تورتم کې څهٔ نشو لیدلی.

همدغه رڼا ده چې دلیدلوقوه له اشیاؤسره مربوطوي اوددې باعث ګرځي چې موږ څهٔ وینو.

لمر پخپله دلیدوقوه نهٔ ده دلیدووسیله ده دهمدغې وسیلې له برکته موږ دبینایي احساس کوو.

تهٔ پهٔ دې پوه شه ! چې لمر دنیکۍ ثمره ده اوله نیکۍ سره شباهت لري.

هماغه نسبت چې پهٔ لیدلي جهان کښې یې دبینایي قوت له لیدلوشیانوسره لري دا دراك پهٔ جهان کښې یې دفهم قوه هم له هغو شیانو سره لري چې دپوهیدلو وړ دي.

څنګه چې پهٔ تیاره کښې څهٔ نهٔ لیدل کیږي او سترګې رڼا ته اړې دي روح هم هغه څهٔ نهٔ ویني چې دحقیقت رڼا پرې نهٔ وي پریوتې .څهٔ شی چې دمعرفت وړشیان پهٔ حقیقت پورې مربوطوي او روح ته دپوهیدواستعداد ورکوي دنیکۍ تصوردی چې دعلم او حقیقت علت بلل کیږي. انسان حق لري چې پهٔ لیدلې دنیا کښې رڼا اودلیدلوقوه له لمرسره مشابه وګڼي مګر که لمریې ګڼي نولویه اشتباه کوي .همدارنګه د ادراك پهٔ عالم کښې انسان حق لري چې علم او حقیقت دنیکۍ نظیروګڼي مګر که عین نیکي یې ګڼي داهم اشتباه ده ځکه چې دنیکۍ مقام له دینه ډیر پورته دی.

لرليدل شووشيانوته يوازې دليدل كيدو قابليت نهٔ بخښي بلكه پهٔ پيدايښت او نشو ونما كښې يې هم تاثيرلري او غذا وركوي.همدغه شان دپوهيدلوړشيان له ېيكى نه يوازې همدغه استفاده نهٔ كوي چې د پوهيدلو وړو ګرځي بلكه پهٔ ماهيت او پيدايښت كښې يې هم دخل لري.
«افلاطون»

## دطبيعت قوانين

دطبيعت قوانين واجب اوضروري نهٔ دي.

دجهان اصل او اساس تغيراوحركت دى هركله چې دغه تغيير مكررشي نوعادت وګرځي اودقانون نوم پيدا كړي.

ديوه خوړ اوبهٔ پهٔ اول كښې يوه معينه مجرانلري اودخپل جريان پهٔ وسيله ځانته لاره او مجرا پيدا كوي وروسته بيا دغه مجرا داوبو دسيراوحركت قاعده او قانون بلل كيږي.

ډير امكان لري چې دغه مجرابدله شي اويوه بله مجرا ورته پيدا شي.

پهٔ همدغه لحاظ دطبيعت چارې ديوه معين اوضروري قانون تابع نشو ګڼلى

«بونرو»

# انساني تکليف

ښهٔ نيت او نيکه اراده دخير اونيکۍ مبدأده . .

نيکه اراده اوښهٔ نيت دادی چې انسان خپل تکليف وپيژني اوپيروی يې وکړي.

تکليف بايد خاص دتکليف د پاره پهٔ ځای کړشي يعنې دګټې او زيان لحاظ پهٔ کښې نهٔ وي.

تکليف هغه عمل دی چې ديوې کلي قاعدې دمتابعت د پاره وي او محض دقانون پهٔ احترام اجرا شي.

هغه څوک چې يو کار دقانون د پاره کوي او هغه چې کاريې له قانون سره موافق وي يورازنهٔ دی.

د دوهم سړي عمل ته مشروع ويلی شو مګرخيراواخلاقي عمل ورته نشو ويلی.

د دې د پاره چې ديوه سړي کار اخلاقي ارزښت پيداکړي يوازې داکافي نهٔ ده چې عمل يې له تکليف سره موافق وي بلکه دا لازمه ده چې دتکليف د پاره وي .

ډير امکان لري چې يو کار ښهٔ وي مګر اخلاقي نهٔ وي لکه ديوه سوداګر صداقت او راستي چې دتجارتي منفعت او اعتبار پخولو د پاره وي نهٔ دتکليف د پاره .

دځان ساتنه له تکليف سره موافق کار دی مګرد دې لامله چې طبيعت ورته ميلان لري اخلاقي عمل ورته نشوويلی .

هغه څوک چې ډير زړهٔ سواندی وي او درقت پهٔ وجه له چاسره احسان کوي ښهٔ کوي مګر اخلاقي عمل نه اجرا کوي که همدغه سړی له خلقونه جفا ويني زړهٔ به يې سخت شي اوله احسانه په لاس واخلي مګر که څوک له خلکونه جفا ګانې ويني اودتکليف پهٔ ځای کولو د پاره احسان کوي هغه يواخلاقي عمل اجرا کوي.

«کانت»

# ژوند

ژوند زمانهٔ نظرکښې غو ښتل دي اوهره غو ښتنه له يوه احتيا ج يامحروميت څخه پيداکيزي يعنې له غم او درد څخه.

که ديوه سړي هره آرزو پهٔ آسانه او سمدلاسه حاصله شي کسالت ورته پيدا کيزي چې له رنځ او غم نه لوی مصيبت دی.

دانسان ژوند هميشه دغم او کسالت ترمينځ واقع دی.

سړی چې هرڅومره له غم څخه لرې شي هغومره کسالت ته نزدې شي پهٔ هره اندازه چې موږ له کسالت نه ځان وساتوپهٔ هماغه اندازه له غم سره قرابت پيدا کوو.

دادوه آفتونه يودبل ضد دي که انسان له يوه څخه خلاص شي دبل پهٔ منګولو کښې لويزي .

څنګه چې غم او رنځ له احتياج او محروميت څخه پيدا کيزي کسالت له راحت او رفاهيت څخه پيدا کيزي .

هرچيرته خواران او غريبان له احتياج اومحروميت سره پهٔ جګړه اخته دي او بډايان له کسالت سره پهٔ مجادله کښې دي.

همدغه کسالت دی چې دعيش او راحت خاوندان يې پهٔ ښکار او قمار پهٔ افيونو اونورو نشومشغول کړي او مجبور کړيدي يايې د دوي مخه تزييناتو اوتجمل ته ګرځولې ده .

دانسان استعداد او قوت دا غواړي چې احتياج اومحروميت لرې کړي او د ژوند پهٔ جګړه کښې پهٔ کار ولويزي نوکله چې احتياج او محروميت

له مینځه لاړشي او په دغه مبارزه کښې معطلي راشي دغه عاطل قوت پخپله یو مونږ پیښی شي او انسان مجبور کاندي چې بیهوده یې صرف کړي اوله کسالت څخه ځان وژغوري.

«کرلوس» دبدایانو بدبختي داسې بیانوي:

«یوددې د پاره چې له کسالت نه وتښتي خپله ښایسته مانۍ پریږدي اوپهٔ تفریح پسې یوه خوااوبله خوامنډې وهي. بل پهٔ ډیره بیړه له خپلې ښځې او اولادونو څخه چیرته لرې دروميي مګر مقصد ته نهٔ رسیږي اوبیرته له هماغه دښمن یعنې کسالت سره بیا کورته راځي اوچاره ترینه ورکه وي ».

«شوپنهاور»

# هیرول

هغه څوک چې څهٔ نشي هیرولی ښهٔ سړی نهٔ دی.

څوک چې همیشه دبل دملامتۍ خاطره له ځان سره ساتي دښهٔ زړهٔ خاوند نهٔ دی .

(.)

# حکمت او سعادت

ارسطو وايي : حکيم او عاقل هغه څوك دى چې خپل غمونه او دردونه لږ کړي نه داچې په ډير ولذتونوپسې هڅه وکړي.

زۀ هم دحکمت ډيره ټينګه او قوي پايه همدغه ګڼم چې سړى له غمونو او دردونوڅخه وتښتي نه دا چې پۀ لذت پسې منډه واخلي .

يعني سعادت پۀ هغه ګريز(تيښته ) کښې دى نه پۀ دغه شتاب (هڅه ) کښې.

هغه کسان ډير غوليدلى دي چې ارزو ګانوته رسيدل سعادت ګڼي ځکه چې له آرزو ګانوسره وداع کول اوبې نيازۍته رسيدل سعادت دى.

هرڅومره چې دخواهشاتوتله سپکه وي انسان هماغومره سعادت ته نژدى وي.

که حقيقت ته وګوروبوروغ او جوړ فقيرله يوه رنځور غاړي بهايى څخه ډير نيکبخته دى .

**سقراط وايي** : ډير کسان دي چې نه جواهرلري نه سرۀ اوسپين نه يې ډيربښۀ لباس پۀ غاړه کښې شته نه پۀ لوړ ومانيو اوښوقصرونوکښې استوګنه لري مګر سره له دې له بهايانونه خوشحاله ژوند کوي.

**شکسپيروايى** : ځينې کسان **لکه** توتيان داسې دى چې دخندا يوه وړه منظره ويني خوله يې له خندانه نۀ راټوليږي .

ځينې نورداسې غمجن دي چې هيڅ رازمسخرې اودخندا ننداري يې نشي خندولى.

دا زموږ خپل خوى اوطبيعت دى چې زموږ د ژوند او سعادت اساس ګڼل کيږي.

موږ بايد دسعادت تومنه پۀ ځان کښې ولټوو اوپۀ دې پوه شو چې

دهر چا نیکبختي پخپله پهٔ ده پورې مربوطه ده .

پهٔ ځان باندې اتکاء اونوروته نهٔ متوسل کیده ، له ډیر وقیدونو او احتیاجاتوڅخه ځان خلاصول اوخپله آزادي زیاتول سعادت دي.

هغه څوك چې پهٔ باطن کښې غني دی له خارجي جهان څخه یوه منفي هدیه غواړي اوبس چې هغه فراغت دی .

دهغه مهمه آرزو داده چې له خلقونه لرې اوپهٔ څنګ وي چې پهٔ دغه وسیله له ځانه استفاده وکړی شي.

لوی خلك له هرڅهٔ نه فراغت خوښوي اوخپلې آزادۍ ته ډیره توجه لري یعنې همدغه شی سعادت ګڼي .

**ارسطوایی:** سعادت پهٔ فراغت اوازادۍ کښې دی.

سقراط هم آزادي او فراغت سترنعمت ګڼلی دی.

څومره چې دیوه سړي فکري او عقلي پانګه زیاتیږي هغومره یې تعلق له دنیانه او ددنیا له خلکو څخه کمیږي .

هغه بیا خپل سعادت د دنیا پهٔ نعمتونوکښې نهٔ لټوي بلکه له معنوي لذتونو څخه خوند اخلي او حقیقي سعادت ته رسیږي .

«شوپنهاور»

# انشاء

دهرلیکونکي انشاء دهغه دفکر آیینه ده .

که غواړئ چې دیوه لیکونکي حقیقي ارزښت ځانته معلوم کړئ دیته مه ګورئ چې دهٔ څهٔ موضوع کښې فکر کړیدی یا د ده دفکرمحصول څهٔ شی دی .

دیوه مؤلف او لیکونکي دمقام پیژندلود پاره همدغه کافي ده چې موږ پوه شوچې دهٔ څهٔ رازفکر کړیدی او دفکر کولو طرزیې څنګه دی؟

دهرچا دفکر طرزاو طریقه دهغه پهٔ انشاء کښې معلومیږي.

دهرلیکونکي انشاء لکه خمیره داسې ده چې مختلف شکلونه اوصورتونه قبلوي مګرداصورتونه که هرڅومره مختلف وي بیاهم خمیره یوه ده .

«شوپنهاور»

# مطالعه او تفکر

څنګه چې ډېره زیاته مطالعه فکروسعت او «ودې »ته نهٔ پرېږدي ډېرلیکل او ډېر لوستل هم دحقایقو دمعرفت مخه نیسي.

د دنیا ډېره لویه کتابخانه چې بې نظمه اوبې ترتیبه وي هغه ارزښت نهٔ لري چې یوه کوچنۍ منظمه کتابخانه یې لري.

همدغه رازډېره زیاته پوهه چې پهٔ ذهن اودماغ کښې ښهٔ هضم شوې نهٔ وي له هغو لږو معلوماتونه لږ قیمت لري چې پهٔ جزئیاتوکښې یې ډېر غوراو دقت نهٔ وَي شوی.

پهٔ حقایقو باندې سړی هغه وخت پوهیدلی شي چې دعلیت پهٔ قانون پوه شي اوپهٔ جزئیاتوکښې مطالعه ولري .

څنګه چې انسان مطالعې ته ضرورت لري تفکر ته یې هم لري مطالعه او تفکر دانسان پهٔ ذهن کښې دوه متضاد تأثیرونه لري چې که یوزیات شي هغه بل کمیږي.

مطالعه دسړي ذهن دهغو افکارواوعقایدو له تأثیرلاندې راولي چې ممکنه ده دانسان له ذاتي احتیاجاتوسره مخالفت ولري.

آزاد تفکر یعنې دهغه طبعي سیر اوحرکت تعقیب چې محیط او ضروري مسایل یې دانسان پهٔ ذهن کښې پیداکوي دمطالعې پهٔ شان څهٔ خاص شی پهٔ ذهن کښې موجودنه وي بلکه دفکر کولوتومنه ذهن ته سپاري همدغه سبب دی چې ډېره زیاته مطالعه دشخصي فکر د پرورش مخه نیسي او سړی څهٔ قدر سطحي اوناپوهه کوي.

علماء اوپوهان هماغه کسان دي چې ډېرکتابونه یې لوستي دي مګر

نوابغ اودفكرخاوندان چې دانساني مدنيت لاربنودونكي دي اودبشريت قافله دترقۍ خواته بيايي هغه كسان دي چې دجهان په كتاب كښې يې غور كړيدى اودنوروپهٔ خبروكښې يې خپل فكرنه دى بايللى.

«شوپنهاور»

## خوى اوخصلت

د انسان خوى هيڅكله تغييرنهٔ كوي هرسړى پهٔ زلميتوب او زړښت كې هماغه دى چې پهٔ كوچنيتوب كښى و.

د ده ډير لوى هنر دادى چې كله كله فريبنده (غولوونكى ) صورت اختيار وي او دافسون نقاب پخپل مخ غوړوي .

كه غواړئ چې دغه حقيقت دتجربې له مخې څانته معلوم كړئ نودهغه اشنا او ملګري پهٔ حركاتو او رفتار كښې ښهٔ دقت وكړئ چې ډير كلونه ترينه بيل شوى ياست وروسته له دغه غور اودقت څخه به داومنئ چې دده خوى اوخصلت هيڅ تغير نه دى كړى او هماغه شى دى چې دمخه و.

ځينى كسان پهٔ ظاهره انكار كوي او داخبره نهٔ مني مګرپهٔ باطن كښې پوره باور لري چې دانسان خوى اوخصلت تغيير نه قبلوي .

همدغه سبب دى چې څوك له چانه څهٔ ټكي برګي ويني پهٔ هغه باندې بيا اعتمادنهٔ كوي.

كه څوك د چاپهٔ نظر يوځل ښهٔ ورغى دهغه په باب هم خپله نظريه نهٔ بدلوي.

د انسان خوى اوخصلت فطري شى دى او همدغه يې دلوړوالي معيياردى كه څوك دفطرت پهٔ لحاظ لوى نهٔ وي نو واړه اشخاص پهٔ مصنوعي وسايلونهٔ لوييږي .

«شوپنهاور»

# دوستانه مناسبت

سړی دځوانۍ په وخت کښې دافکرکوي چې دانسانانو مناسبات په یوه بنه اساس اوپه حقیقي اصولوولاړدي مګر کله چې دژوندانه یوڅه مراحل طی کړي نوبیا پوه شي چې بشري مناسبات بې له شخصي ګټې په بل شي نه دي ولاړ.

هرڅوك چې ډیر مال لري اودلوړمقام خاوند دی هغه په خلکو کښې محبوب او محترم دی. هغه بل چې دبنه نیت اوبنواحساساتوخاوند دی مګر په دوستۍ کښې یې څه ګټه نشته څوك ورسره مینه نه لري.

هغه دوستي اوهغه مینه چې شخصي ګټه اوپټ مقاصد په کښې نه وي دلته ډیره لږه ده اوله لږو خلکو سره ده.

«شوپنهاور»

## بدي اوضرر

څومره چې لوړ اوعالي مبادي په یوه بد سړي کښې فاسد شویدی. په ځناور وکښې هغومره نه دي فاسد بدي په هغه شي کښې لږه ده چې د ابتکارمبدأپه کښې نشته ذکأ چې دابتکار مبدأده بدي زیاتوي او ضرریې ډیروي دیوه ظالم انسان ضرر زرځله دیوه مضر حیوان له ضررنه زیات دی لکه چې دیوه جماد ضررله حیوان نه لږدی او ظالم له ظلم نه ډیر بد دی.

«ارسطو»

## لویه اشتباه

څوک چې دافکر کوي چې پوهه اوفضیلت دسړي قیمت او مقام په جامعه کښې لوړوي ډیره لویه اشتباه کوي ځکه چې دغه شی بالعکس کینه اودښمني پیداکوي نه مینه اومحبت.

دعلم اوفضل اظهاربل شی نه دی دنورودنادانۍ تأئید دی څنګه چې ثروت او مقام دسړي قیمت په جامعه کښې لوړوي علم او عقل د نورودکینې اونفرت موجب ګرځي.

پوهان اوهوښیاران دخلکومینه اومحبت نشي جلبولی بلکه بدبیني او تمسخر ځانته جلبوي . «شوپنهاور»

# افتخار

هغه افتخار چې لکه دځیړۍ ونه په ډیر وخت کښې وده کوي او غځیږي دوام اوپایښت یې هم ډیروي .

هغه بل افتخارچې لکه د پسرلي بوټی ژرپیدا کیږي او ژر لوئیږي له یوه فصل نه زیات دوام نه لري او ډیر ژرله مینځه ځي .

دهنر خاوند چې له ابدیت نه هرڅومره زیاته استفاده وکړي یعنې په ټول انسانیت پورې تعلق ولري هماغو مره له خپل عصر څخه پردی وي داځکه چې دهغه اثر دهغه په عصر پورې اختصاص نه لري بلکه دبشر دتاریخ یو جزء وي دهمدې لامله معاصرین ورته ښه نه ګوري بلکه با لعکس په هغو کتابونوپسې هڅه کوي چې ورځني مسایل په کښې وي.

«شوپنهاور»

# غضب او شهوت

هغه بې اعتدالي چې په غضب کښې وي له هغې بې اعتدالۍ نه ښه ده چې په شهوت کښې وي یعنې دغضبي قوې افراط دشهواني قوې له افراط څخه ښه دی .

قهر او غضب دعقل غږ پوره نشي اوریدلی او داسې مثال لري لکه چې یونوکر دخپل بادار امر لږغوندې واوري او دتعمیل د پاره منډه واخلي یعنې امرته ترآخره غوږ کښینږدي او په کارپسې وځغلي مګرشهوت دعقل یاحس په یوه اشاره دځوند او لذت په لورې هڅه کوي او امرته هیڅ نه ګوري.

دغضب خاوند مکار نه دی او غضب هم مکر جن نه دی.

مګرله شهوت سره تړلی دی اودشهوت کار دی.

همدغه سبب دی چې دغضب په ډیر والي کښې دومره رسوایي نشته لکه چې دشهوت په ډیر والي کښې شته .

«ارسطو»





# دوستـــي

دوستي يوازې يوضروري امرنه دی بلکه يوه ډيره شريفه اوآبرومنده عاطفه هم ده .

ځينی وايي چې دوستي يو ډول مشابهت دی اوهماغه اشخاص يودبل دوستان وي چې يوله بله مشابهت لري دهمدې لامله بازله بازسره او كوتره لهٔ كوترې سره الوزي.

ځينې نورپهٔ دې عقيده دي چې كه دوه تنه يوكاراويوه پيشه لري نوهغه هيڅكله نشي دوستان كيدلی .

ځوك چې دفطرت پهٔ قوانينو استناد كوي لكه (اورېپيدس).

هغه وايي : دوچې ځمكې باران خوښ دی اوباراني وريځې داغواړی چې پهٔ ځمكه باران واوروي.

هراكليتس پهٔ دې فكر دی چې ضديت دنزدې كيد وموجب دی اوډيرښهٔ موافقتونه له مخالفتونوڅخه پيدا دي.

داخبرې به پريږدواودابه ووايوچې د دوستۍ موضوع څهٔ شی دی؟
خيركه لذت كه منفعت ؟

هغه كسان حقيقي دوستان نهٔ دي چې دمنفعت د پاره دوستي كوي اوپهٔ ګټه مين دي. د دوی دوستي به ترهماغه وخته وي چې يوله بله ګټه كوي اودګټې اميدموجود وي.

دچادوستي چې پهٔ لذت بناده اوپهٔ خوند پسې ګرځي هغه هم له حقيقي دوستۍ نه خبرنهٔ دي دهغه دوستي هم بې بنياده ده ځكه چې لذت هم لكه منفعت بې ثباته دی او ژر ژر بدليږي.

په دې دواړودوستيوکښې دوست با لذات مقصودنه دی بلکه لذت يامنفعت اصلي مقصد دی.

پوره اوحقيقي دوستي هغه ده چې دښوخلکو ترمنيځ پيداکيږي اوپه ښه والي بناده .

هغه خلك چې دخير حاوندان دي او دبل خير غواړي مينه يې يوله بله ذاتي اوحقيقي ده.

. دا دوستي په خير اوفضيلت بناده اوپايه يې ډيره ټينګه ده .

دوست هغه دی چې د دوست خير غواړي اوخير وررسوي.

په دوستۍ کښې داشرط دی چې يوله بله له عواطفو ډك احساسات ولري اودا احساسات اوعواطف دواړوخواوته معلوم وي .

په دوستۍ کښې آميزش اوالفت ناسته ولاړه ضروري ده.

دوستي دمساوات په اساس ټينګيږي چې هر يودبل حق اداکړي اوهريودبل محب وی.

ډير خلك دا غواړي چې دنورومحبوب شي او پخپله دهيچامحب نه وي په همدغه وجه خپل متملقين په ځان راغونډوي مګردوستان نشي پيدا کولی.

متملق هماغه دی چې خپل ځان ټيټ ګڼي يالږ ترلږه خپل دوست ته داښيي چې زه په تادومره نه يم ګران لکه چې ته پرماګران يې ځکه دغسې کسانو ته دوستان نشوويلی .

دوستی هغه مينه ده چې له دوست څخه بيرته انعکاس کوي اوله يوې خوانه نه وي همدغه سبب دی چې دانسان مينه له سرو اوسپينوسره

ياله ښو جامو اوښوخوراکونوسره دوستي نهٔ ده ځکه چې له يوې خواده اوبيرته انعکاس نهٔ کوي.

**پهٔ دوستۍ کښې مقا بله بالمثل پهٔ کار ده اوبې مساواته دوستي دوستي نهٔ ده .**

**مينه له يوې خواپيدا کيداى شي مګردوستي له يوهٔ طرفه هيڅکله نهٔ وي.**

دوستي که دلذت يا منفعت پهٔ اثر وي کيداى شي چې بد خلک له بدو خلکو سره ياښهٔ اشخاص له بدو کسانوسره دوستان شي مګر که خير اوفضيلت د دوستۍ اساس وي نودښواوبدو ترمينځ دوستي نهٔ پيدا کيږي.

حقيقي دوستي هماغه ده چې دنيکانو اوښوخلکو پهٔ پاکوزړونوکښې ځاى لري اوپهٔ خير اوفضيلت بناده .

«ارسطو»

## ښکلا

ښکلا يوه منطقي قضيه ده چې صغرى يې سترګې دي او کبرى يې زړهٔ دى نتيجه يې عشق دى .

«سقراط»

# وحشي اومدني انسان

عمومي نظریه داده چې وحشي انسان په هیڅ ډول اخلاقي اصولوپابندي نه لري بلکه هروخت دخپلو غرایزو تابع وي اوهرکله دخپل میل اوخواهش رضاء غواړي.

انسان پیژندونکي پوهان دانظریه نه مني اووایي :

وحشي هغه دی چې د آدابواورسوموډیرپابند وي اوپه ناسته ولاړه تلك او راتلك بلکه په هراقدام اوهغه خبره کښې دخاصو اصولو اومقرراتو پیروي کوي، یعنې وحشي انسان هغه مریی دی چې پخپل رفتار او کردار کښې دیوې طایفې دعاداتودلاس آله وي اومتمدن انسان دغه رازنه دی .

«جان دیویی»

تکثیر از:



M.M. AFGHANISTAN
P.O.BOX 3373
Arlington, VA. 22203
U.S.A.

سازمان مهاجرین مسلمان افغانستان به هیچ کدام از تشکیلات مشخص وابسته نبوده بلکه در خدمت تمام مردم مجاهد افغانستان میباشد.

۱۹۹۴